د ۱۳۵۱ لمریز کال
د حمل لومړۍ ګڼه
پر له پسې ګڼه ۱۳۹

د تأسیس کال ۱۳۳۹

# کندهار

د اطلاعاتو او کلتور

میاشتنۍ خپرونه





زموږ د نامتو قهرمان او ستر قائد میرویس نیکه مقبره
داعکس ۱۳۱۴ کال د عقرب په ۲۸ نیټه اخستل شوی دی

د یوې ګڼې بیه ۴ افغانۍ

# د کندهار مجلې د سموون په غرض
## د تحریر هیأت وټاکل سو

کندهار د دولی ۷:

د کندهار د میاشتنۍ مجلې د محتویاتو د ښه ترتیب او تنظیم په غرض چې د طلوع افغان د ورځپاڼې په څنګ کې د دغه ولایت د سابقه لرونکو خپرونو څخه ده د اطلاعاتو او کلتور لوی مدیریت د دغې مجلې لیکوونکي او قلمي مرستیالان د تحریري هیأت په ډول ټاکلي دي.

د دغه مدیریت یوې منبع وویل:

تحریري هیأت د دغې میاشتنۍ مجلې تر خپریدو دمخه علاوه پر دغه چې د دې مجلې د اختصاصي مضمونونو په برابرولو او ترتیبیدو کې مرسته کوي د مجلې د راتلونکې میاشتې د پروګرام په باب هم مشورې او خبرې کوي.

د کندهار د مجلې تحریري هیأت د مجلې د ثور د میاشتې د پاره په زړه پورې مضمونونه شعرونه تاریخي مطالب، جالب خبرونه او نور مجلې معلوماتونه ترتیب او برابر کړي دي.



د کندهار د مجلې د تحریري هیأت غړي

## د کال د لومړۍ چارشنبې د زیات شمیر میرمنو له خوا د بابا ولي صاحب
### په بڼ کې ډېر نمانځل سوه

د تېرو کلونو په شان سږ کال هم د حمل په دوهمه نېټه د کندهار یو زیات شمیر میرمنو او نجونو د بابا ولي صاحب په پارک کې چې د کندهار د ښار د شمال لوېدیځ په لس کیلو متري کې د ارغنداو په غاړه کې یوه ښکلې او سمسوره سیمه ده د کال د لومړۍ چارشنبې میله وکړه.



د کال د لومړۍ چارشنبې د ښځو د میلې یوه برخه

د کال د لومړۍ چارشنبې میله د پخوا کالو راپه‌دې خوا د کندهار د ښځو له خوا په خاصو مراسمو سره نمانځل کیږي او اوس په دغه لومړۍ چارشنبې ښځې، پېغلې او نجونې په خپلو نویو او ښکلو جامو او د سرو زرو په ګیڼو سره ځانونه سمبالوي او په میله کې ګډون کوي. په خوندور خواړه پخوي، د ډېپ وهي، د پسرلي او نوي کال سندرې وائي، اتڼونه اچوي په ټالو کې ځنګیږي او دغه ورځ په ډېره خوښۍ تیروي.

سږ کال تر ۳۰۰ زیات سرویس موټرونه، لاریانې، شخصي موټرونه او ټکسیان بابا صاحب ته د میرمنو او نجونو د رسولو او راستنولو د پاره په کار لوېدلي وه.

په دغه میله کې ۱۳۰ تنو کوچنیانو چې خپلې مندۍ ورکې کړې وې د څارنجونو له خوا خپلو دوستانو ته ... دغه رنګه ۲۵ تنه کوچنیان چې د لوبو د شیانو په واسطه ټپیان شوي وه، د مرستون په هغه کمپ کې چې ...ي جوړ شوی ؤ، پانسمان شول.





د ۱۳۵۱ لمریز کال دوری میاشت

# دکندهار مجله په نوی

## کال کی

دنوی کال په راتلو سره د کندهار میاشتنی ادبی، تاریخی، اجتماعی او علمی مجله هم په نوی نشراتی کال کی داخلیږی او موږ د کندهار او افغانستان دمادی او معنوی پر مختګ په خاطر دپاك خدای (ج) په نامه دغه په نوی نشراتی کال پیل کوو.

په ۱۳۵۰ کال کی که څه هم دغی مؤقری اودرنی مجلی مسؤل مدیر نه درلود او دطلوع افغان دورځپاڼی دمرستیال د کمبود سره سره موږ و کولای شوای چی دخپلو قلمی او مسلکی مرستیالانو په مرسته دسپارلنی ورځپاڼی پر ځپل وخت دخپریدو سر بیره د کندهار مجله چاپ او دغه په خپرولو کی مو ځینی نوی ګامونه پر مخ واخستل او هغه دا چی دمجلی تودی چی پخوا لوی دولس بنڅه تودی وه چی موږ ئی په ورځپاڼه کی دعنوان په حیث استعمالولو موږ مجله په عادی دولس بنڅه تودو خپره کړه چی اوس هم په هغه تودو خپریږی، کاغذ مو ورپدل کړ او په سپین کاغذ چاپیږی او دطلوع افغان دورځپاڼی اونورو جریدو داقتباسی مضامینو څخه مو ډډه وکړه او نوبو مضامینو او تر جمو ته مو ځای ورکړی وو.

سږ کال غواړو چی د اطلاعاتو او کلتور د محترم وزارت په لارښوونه او مرسته، د دولتی مطابعو دریاست د طباعتی آسانتیاؤ برابرولو دلاری او د کندهار د پوهانو او لیکوالو په قلمی همکاری خپله مجله دصحافت، کمیت او کیفیت په لحاظ پوره په ښه پوړی ورسوو او هغه د کندهار محلی او ملی موضوعاتو ته اختصاص کړو.

موږ اوس دغی مجلی ته د کندهار دحساسو او پوهو لیکوالو دلیکنو پو هیأت ټاکلی دی او باور لرو چی دغه محترم هیأت به مجلی ته د کندهار د تاریخی، کلتوری اجتماعی او ادبی موضوعاتو په لیکلو کی مرسته وکړی او مجله به د دغو پوهانو او د هیواد په نورو سیمو کی د کندهاری پوهو لیکوالو او مؤرخینو په همکاری

(۲۶مخ)

د نوی کال دراتلو سره:

# دمینی سوز

ی سوزدی چی څاڅی په نخادر اوسئل
د بڼ په غولی کښی ګلونه په خندا اوسئل

چی چه اتی دمحبت کاپر چاپیر دګلو
و دی مجلس تی پروانه ستن و بودرا اوسئل

چی پراته دی رو په څاڅکی د ګلو تو پر مخ
دعشق اثر ؤ چی اوده ئی په ژړا را اوسئل

نوی مو جو تی درڅوا د بو پر مخ مو اله کړل
قدمبوسی ته د ساحل باد صبا را و ستل

نسیم چی مسك شی له دی بڼه هرسړی به وایی
په دی ورځو مو کښی ئی کبلی پیاله خندا اوستل

دپسرلی لومړی سهار ؤ د نړی په دنیاوی له مخه کرار کرار دشپی توره سلاری څو پدو تونه دی وه چی دمخ د ټانی ټولی مجکی ته علاو رکړی، نسیم دهر چا دماغو ته د ګلو ګیډی نیولی، هوا ډیره صافه وه، دا سمان پر مخ د نوستورو ددداع ستر ګکو نه وهل، په ټوله شاوخوا کښی چپه چپاتی وه، او د مرغانو شغول د بڼ له لوری هسکیدی، کله په دستړو پردیسانو د کاروانو جرسونه هم ددی نغمو سره هم آهنګه سوه، پدی خاموشه فضا او دپټی خولی په عالم کښی دشپنو دشپیلیو غږونه د مرغانو د بز د جرس شرنګا شرنګ عجیب انعکاس کاوه وبشو دی دونو د کوچا کوچ دمزونه د سول څیرو ستر ګو تی د وصلت پارڅو نه مجسم کول په یو عالم پریشانو افکارو کښی راو پاڅیدم مخ د بڼ پر لوری رهی شوم په بڼ کښی دڅا څوڅو د هار او د مرغانو یوتود شغول ؤ چی له یوی څانګی څخه په بلی ته الوتل.

ګلانو و یږه خو له خندل، بلبلانو ددوی په حضور کی دسوز سندری او زړه وړونکی نغمی ویلی له خو شحالی څخه په رقصیدل. زه هم دیو ګل بوټی و څنګ ته کښیناستم د ګلانو خندا او د بلبل دسوز غلیلو یو عجب کیف را کړ. و دی ګل ته ټو دی یو بل ګل ؤ چی تازه ئی د سپار په شمال سره له مخه پلوا یسته کړی او و یږه خوله ئی خندل، ددې ګل په خوا کښی یو بلبل ناست ؤ چی د پټو په ډول ئی پر شاوخوا کی پدی کله په ئی ترو ز دلاندی کی او کله په څنګی پیر ته شو خو په هیڅ ډول ئی سوده نه کیده.

سبحان الله په دی بڼ کښی یو عجب دمحبت او مینی عالم مشاهده کیږی، د ګلو بوی په عجب رمز دمحبت پیغام اور حوته د سوی او ټول شیان څنګه دمینی په روح ژوندی او دهوا په طرا وت مست دی.

زه په دغو افکارو کښی یو ګډی ډوب تللی او لکه یو بیر وحه بدن د قدرت ددی ښکلی صنایعو په ننداره کښی محو وم چی د بڼ دد یوا او په ها خوا می له لیری یو خو دا زړه وړونکی او پر سوزه آواز تر غوږ سو چی و یل ئی:

محبت اول اسانه په نظر راځی
په آخر کی می نصیب خون جګر راځی

سپړلی کندهاری

عبدالقدوس نجیب :

# دبرین دیگ د تاریخ یوه گوښه

دادیگ په ۱۳۰٤ هجری شمسی کال کښې د کندهار دولایت زاړه ښار ته نیودی پیدا سواو د کابل موزیم ته یووړه شو.

دادیگ له یوې ټوټې تورې ډبرې څخه چې د نیمې کرې په څیر مجوف اودایره ئې په د ننه خوا کښې مستدیره او په دباندې خوا کښې پر ۲٤ ضلعو مشتمله مضلع ده جوړ شوی دی، د چاپیره لیکنو څخه ئې چې په ښکلی

ثلث عربی لیک سره لیک شوی دی د کندهار د زاړه ښار تمدن، تدین او ترقی ښیی. دغاړې خواته د اومړنی او اخیرنی منطقې نوشتې پرمخ محوه او دویلو قابل نه دی چې له هغه څخه دی دبانی او واقف نوم معلوم شی

او دباقي طرفو لیکنی تربوی اندازې پورې ویل کیدای شی.

کوم ځایونه چې نه ویل کیږی په هغو ځایو کښې ټکی ایښوول شوی دی چې دو پو نکو داشتباه باعث نشی دلیک د تاریخي ونیقې په ملحوظ سره لومړی ئې اصل دری متن بیائی پښتو ترجمه د ګرانو ویو نکو داستفادی دپاره وړاندی کوو :

## دديګ د څنډې ليک:

علیه الصلواة و افضل من التحیات درین ایام خجسته فرجام.... توفیق عالی یافت جمال سلطنت و مملکت ... افضل الاهالی مرجع الاکابر و الاعالی.....شجاع..

## اومړی منطقه:

حضرت باری خواجه ایوب انصاری و بعد از انکه حضرت واقف مذکور..... من له الولایت ..... این را ساخته وهم از برای اولاد وقف نموده....... متوالی و..

ظر... آنحضرت وقف کرد... رت واقف مذکور بر بقاع مذکوره و بر مدرسه که واقف مذکور بنا نموده.



هغه برین تاریخی دیګ چې د کندهار په زاړه ښار کښې ومو ندل شو

ومحاذی این مدرسه مذکور وقف لازم کرد ... واقع درولایت کندهار موسوم به «سنګک حصار» درحالی که حق وملک وی بود وببیع صحیح شرعی خریده بود

از اولاد جناب امیر مرحوم امیر نظام الدین حینیکه سلطان ملازم مغفور سعید شاهرخ میرزا بمبلغ هزار و پانصد مثقال نقره سره مضرو به همګی و تمامی قریه واقع درولایت مذکور موسوم به (ده روح آباد) جناب واقف مذکور .....به بیع صحیح....مثقال نقره ازوجه حلال ضرب کرده بعضی آن.....همګی و تمامی (خنجکک).

## دوهمه منطقه:

که از همین نهر مذکور جناب واقف مذکور آب بدانجا برده احیا نموده و همګی و تمامی (منکلحیه) که جناب واقف مذکور ازورثه امیر جلال الدین فیر وزشاه که ملازم استان حضرت سلطان مغفور مذکور بوده به بیع

صحیح و شرعی خریده وهمګی وتمامی این ده قناطی موسوم به (دهک) واقع درمیانه میمند و کوشک نخود وهمګی وتمامی ثنات (جهل ګزی) که قریب بکوشک نخود واقع است وهمګی وتمامی اعناقات چهار قطعه باغ در کل این قریا قطعه (اعلصر) و قطعه (ده زنګی آباد)

و قطعه (ده میخوش) و قطعه (ده بوما ل) وهمگی وتمامی اعتاقات که واقف مذکور بنا کرده

شتاد وشش دکان واقع در بازار ... بدرون بلده قندهار بقرب مدرسه مذکور جانب جنوبی مدرسه ومنجمله شانزده باب دکان متصل

راهگذر ودیگر جانب غربی بازار مذکور وهفت دکان جانب شرقی بازار مذکور جانب شمالی مدرسه

مذکور ودو پنجاه و یک در جانب شرقی بازار مذکور و بیست و هفت در جانب غربی بازار مذکور بر بیست و چهار در و نوزده ستون

همگی وتمامی اعتاقات حمامی واقع در چهار سوق بازار مذکور وهمگی وتمامی کاروان سرای

واقع در اندرون بلده مذکور حدود جملهٔ موقوفات وموقوف علیها در وقفیه مسطور است وجمیع انچه ازموقوفات باید شمرد از

حدود ومرافق وحقوق وآداب مرکبه حمام مذکور وکل ازقبیل موقوف فیها وقفی صحی وصادق وجازم بحیثیکه قیراط وحبه او

دریمه منطقه:

بخشیده شود که بهیچ وجهی از وجوه ملک کسی نشود جناب واقف مذکور خزاین وقف را ازبرای فقرا و مسلمانان کرده اند وشرط کرده اند واقف مذکور که متولی بقاع موقوف علیها واین موقوفات مذ

کوره خود باشد علی سبیل الاستقلال تا مادام الحیات هرنوع تصرفی خواهد کند وشرط کرد جناب واقف مذکور که بعد از وفات وی

از اولاد ذکور وی بطناً بعد بطن هر کدام اعلم واصلح باشد متولی این موقوفات وی باشد اگر درعلم وصلاح مساوی باشند اسن متولی باشد اگر از

اولاد ذکور وی هیچ بطن نماند از اولاد اناث بهمین قانون متولی باشند واگر از اولاد جناب واقف کسی نماند هر کس

مدرس مدرسه باشد متولی باشد وچون متولی از اولاد باشد حق التولیه عشر گیرد واز غیر اولاد بقدر اجرت عمل گیرد وشرط کرد جناب واقف مذکور که موقوفات

را باجارات بمتعلیه بدهند وآنچه ازین موقوفات حاصل شود اولا بعمل ضروریه ومرمت این موقوفات وموقوف علیها

باشد ازحصیر وفرش وروشنایی وغیره ذالك وآنچه ازین وجوه فاضل آید از آنچه متولی براین صرف نماید ازان برای آن که هر پنج دینار بوزن یکمثقال سکه نقره باشند

څلورمه منطقه:

وگندم سفید آب تیرماهی کشت جید سنگ بازار قندهار هر خرواری چهل من برآید باوظایف اخند دین دار ومدرس

عالم که در هفته پنجروز اول بدرس ومذاکره علوم شرعیه ومقدمات آن اشتغال نماید هر مدرس هر ساله نقد دو هزار حنطه چهل خروار شعیر ودو معید

هر معیدی نقره چهارصد وهشتاد دینار وحنطه پانزده خروار اجر ده درس دوازده نفر اعلی آن چهار نفر هر نفری نقده سیصد

وشصت دینار وحنطه ده خروار واوسط هر نفری نقده دو بیست وچهل دینار وحنطه هفت خروار وادنی چهار نفر آن هر نفری نقده یکصد وهشتاد دینار وحنطه پنج

خروار ویک امام عامل صالح که در مدرسه بامامت صلوته خمسه قیام نماید هر ساله نقده سیصد و شصت دینار وگندم ده خروار ویک

مؤذن عالم اوقات صلوات نقد یکصد وهشتاد دینار وگندم پنج خروار این وظایف مدرسه پردازند حضرت

واقف مذکور اول یک مدرس وطلبه معید ویک خادم به در مدرسه حاضر باشند ومهمان دستور وظیفه گیرند ووظایف ارباب وظایف مقبره

مصدر شود حفاظ وامام هفتصد و بیست دینار وحنطه هشت خروار .... پنج نفر هر نفری نقد چهارصد و

هشتاد دینار حنطه چهار خروار مؤذن نقد صد و بیست دینار حنطه سه خروار .

پنځمه منطقه:

شرط کرد حضرت واقف مذکور که یک نفر از طلبه مدرسه خاصتاً

کتابدار مدرسه مذکوره باشد وو ظیفه بدستور دیگر طلبه بگیرد وهر

کس از طلبها باید بیتوته کند وهر کس بیتوته نکند مدرس مدرسه بقدر آنچه بیتوته نکرد از وظیفه وی

کسر کند وظیفه خادمی که در سقاوه مدرسه مذکوره باآب کشی قیام نماید بدستور خادم مدرسه مذکوره باشد وظایف راتب غلور

خانه بر بن مواجب است وظیفه یکنفر شیخ صالح متدین که از غلور خبر دار بوده

بمستحقان برساند هر سال نقده
سه‌صد و شصت دینار غله ده خروار
وظیفه طباخ دویست و چهل دینار
و وظیفه یکنفر مرد خادم سه‌صد

دینار و روانې غلوري که در شش ماه
زمستان خواهد بود بهار هر روزه
گندم یک خروار گوشت چهار من
نمک دو من بصل دو من حمص دو من

چغندر و شلغم ده من و در شش ماه
تابستان هر روز یک خروار نان
بمستحقان رساند و هیمه آنچه
باید بخرند و در هر سه‌ماه پنج من

دوشاب و یک من روغن و یک من
آرد حلوا بپزانند و ده من آرد نان
پخته بمستحقان رساند.

کرد این چشمه پر ز شربت قند
حضرت شهریار خضر مآب
ساخت تاریخ این بدین تعزیب
کاتب العبد جای شربت آب

## پښتو ترجمه:
## د دیګ د څنګ لیک:

تر ډوډ او تحیاتو وروسته په
دې څو نیکمرغو دورو کښې ....
دوا کمنې او هیواد واکمن چې د
اهالیو غوره او د مشرانو مرجع
دی واک ومونډ.

## لومړۍ منطقه:

خواجه ایوب انصاري ...
لومړی وقفونکی چې د ولایت
څښتن دی .... دا جوړ ....او بیائې
د خپلې اولادې ته وقف کړ

بیاغلي وقفونکي (واقف) دغې
مدرسې ته وقف کړې چې مرحوم
بلار ئې جوړه کړې وه ددې

مدرسې محاذ چې د کندهار په
سنګ حصار کښې واقع دې او
دولې مال و ملک ؤ له حلالې وجهه
څخه ئې په صحیح شرعي بیع د امیر

نظام الدین له اولادې څخه سره
د روح آباد له کلې د انیولې ؤ

## دوهمه منطقه:

له دغې ولې څخه چې واقف
د منه‌ځاي ته او به بوتلې نو ئې
د قوله (منکلحیه) ته نوي ژوند
و باخښه لومړی وقفونکي (واقف)

د امیر جلال الدین فیروز شاه
له ورتې څخه چې د خدای بخښلې
مغفور سلطان ملازم ؤ یو کاریزې
کلې چې (ده‌کت) نومیږي او د

میوند د کشکنخود په منځ کښې
واقع دې او قوله د چهل ګزې کاریز
چې د خود کشکنخود ته نیږدې دې
څلور قوقي باغ ـ یوه قوته ځمکه

په زنګي آباد یوه قوته ځمکه
(د میخوش) په کلې او یوه قوته ځمکه
(د ربمال) کښې اتیا دوکانه د
مدرسې و جنوبي خوا ته دوه‌ننه ښار
په بازار کښې ولاړې ته نیږدې
شپاړس دوکانه د بازار و غربي
خوا ته او دوه دوکانه د بازار و شمالي
خوا ته یو پنځوس دوکانه د بازار

و شرقي خوا ته او دوه ویشت دوکانه
په یوه ځای کښې او څلیر ویشت
دوکانه سره له نورو سټونو په
بل ځای کښې د بازار و غربي خوا ته

یو حمام د بازار په چهارسو کښې
یو کاروانسرای په دننه ښار کښې

دا قوله موقوفات او موقوف علیها
چې په وقفیه کښې لیکل شوي دي

په صحیح شرعي بیع ئې د انیرل او اقرار
ئې وکړ چې دا قوله باید له موقوفاتو څخه
وشمیرل شي.

## دریمه منطقه:

د اوقف ـ د فقیرانو او مسلمانانو له پاره
سوی دی په هیڅ وجه د دا مال و ملک
نشي کیدای په دې شرط چې لومړی
واقف دې د ژوند تر پایه پورې د موقوفو

ځمکو متولي وي او وروسته له مرګه څخه دې
نارینه اولادته د اعلمیت او اصلحیت په
قید سره بطن پر بطن پاتې دې

موقوفاتو ته لا وروسیږي احیاناً که په
اولاد کښې ئې دوه په علم او صلاح کښې
سره برابر وه نو په دوی کښې مسن حق
د تولاري که له دې کورنۍ څخه هیڅوک

پاتې نشو د اناتو وسلسلې ته دې په دغه
قانون سره د تولي وظیفه ورمحو له
کیږي که له دوارو خوا او څخه څوک

پاتې نشو او هر څوک که د مدرسې مدرس ؤ
هغه دې متولي وي که متولي اولاد
درلودې (حق التولیه) دې لسمه اخلي او
غیر له اولاد څخه دې د کار مزدوري

اخلي ـ موقوفات دې د تملیه په اجاره
سره ورکول کیږي لومړی که څه هم
له موقوفاتو څخه حاصلیده په ضروري

کارو لکه د مدرسې مرمت او یا د نورو
موقوفاتو او موقوف علیها په نیمګړی تیاو
دې مصرفیږي که ترې اضافه سوه د فرش
تنویر او نورې د اسې ضروري چارې
فرض دي.

## څلرمه منطقه:

دمنی دا او یو جید سپین غنم دی د
کندهار په وزن سره چې خروار ئې
څلور بهت من ده دی (پاته په ۲۷ مخ کې)

د عبدالمنان امین په قلم:

# د افغانستان او شوروی اتحاد دوستانه مناسبات



صدراعظم دکتور عبدالظاهر د حمل په دوهمه نیټه د خپلو ملګرو سره له شوروی اتحاد څخه کابل ته راغی.

د افغانستان صدراعظم د کب د میاشتې د ۲٤ نیټې څخه د وری د میاشتې تر دوهمې نیټې پورې

د شوروی اتحاد د حکومت په بلنه د غه هیواد ته دوستانه سفر وکړ.

صدراعظم دکتور عبدالظاهر

او ورسره ملګرو د مسکو په علاوه د سوچی، تاشکند او سمرقند د ښارو څخه هم کتنه وکړه.

او د شوروی اتحاد د خلکو د ژوند د طرز او د هغه ځای د اقتصاد او فرهنګ د پرمختګونو سره زیات آشنا شو.

د افغانستان صدراعظم او د شوروی اتحاد د مشرانو ترمینځ په خبرو کښې د افغانستان او شوروی

اتحاد د دوستانه روابطو د زیات پرمختګ او همدارنګه د بین المللی او د دواړو هیوادو د علاقې وړ مسایلو په تیره بیا د سیمه ایزو موضو-

عاتو په باب ګټوری خبری وشوی.

د افغانستان او شوروی اتحاد حکومتو د دوو روابطو د سطحې

د پراختیا او د

د دواړو هیوادو د

علایقو په باب چې د بیلو بیلو اجتماعی او سیاسی رژیمو او درلودونکی دی او د غه روابط دایمی پیړی ته راپدی خوا دوستانه

بڼه غوره کړی او د مسالمت آمیزه ژوند نښه ده، خوښی څرګنده کړه.

د دواړو هیوادو د مشرانو د خبرو اترو

او کتنو په ترڅ کې هڅه کړی ده چې د دواړو هیوادو دوستانه روابط لا ښه او زیات ټینګښت او د دواړو هیوادو د همسایه توب د علایقو د زیات والی د پاره چې د خپلواکۍ، حاکمیت او د ځمکنی د تمامیت د اصولو او احترام، د حقوقو د برابروالی او د یو او بل

په چارو کښې د مداخلې نه کولو په اساس ولاړ دوی.

شوروی اتحاد د افغانستان د پنځه

کلنو انکشافی پلانو په اجرا کولو کې زیاته برخه اخیستې او په راتلونکی پنځه کلن پلان کې به هم مرسته وکړی.

## افغانستان او هند

په روانه میاشت کښې د هند د خارجه چارو وزیر ښاغلی سوارن سنګ د افغانستان د خارجه وزیر ښاغلی محمد موسی شفیق په بلنه د سیمه ایزو جریاناتو

او نړیوالو اوضاعو په باب د یو او بل د نظریاتو د څرګندولو په غرض کابل ته راغی. د افغانستان او هند د اقتصادی ګډې همکارۍ په کمیسیون کی ئی د خپل هیواد د هیئت ریاست هم پر غاړه واخیست.

افغانستان او هند له پخوا څخه یو د بل سره دوستانه مناسبات لري

او د زمانې په تیریدو هر یو هیواد هڅه کړی ده چې دا مناسبات ټینګ او پراخ شي.

د هند خارجه وزیر په کابل کښې د افغانی مقاماتو سره د تجارت د پراختیا امکانات، په اقتصادی ساحو کې مرستې، د صنعتی تجارتی او مالی مؤسسو ترمینځ د تماسونو پراختیا او تقویه د کرهڼې او د اوبو لګولو، برېښنا او صنعتی همکاری په ساحو کښې او هم په ځینو افغانی

پروژو کښې د همکارۍ په باب خبری اتری او موافقې وشوی.

همدارنګه د افغانستان او هند ګډ کمیسیون د افغانی څانګو لخوا د پلان جوړول، کانو، کرهڼې او اوبو لګولو، فواید عامې، اطلاعات او کلتور، صنایعو، صحی چارو

او په بیلو بیلو څانګو کی د پرسونل د روزنې په هکله مطالعې شوی دي.

(پاته په ۲۷ مخ کی)

غلام رسول ابو یزی:

# زموږ عنعنوي میلې او ساتیرې

زموږ په تاریخي او ښکلي ولایت کې چې څه د پاسه دوه سوه کاله دمخه د ننګیالي میرویس نیکه او تر ټولو ډیر بریالي احمدشاه بابا د حکومتونو په عصر کې د هیواد د علم، اقتصاد او سیاست مرکز و، خلکو ئې ډیر ژوندهدله، د میلې ساتیرې او بانډارشو قیان دی او د مساعدې هوا، ښکلو باغونو او سمسورو سیمو له کبله کندهاریان

زیاتې عنعنوي میلې او ساتیرې لري او په تیره بیا د رخصتي او اخترونو ورځې په دغو میلو کې په خوښۍ، سندرو ویلو، میلې اتڼونو، ورزشو (پتو)، سطرنج او ملي لوبو تیروي چې مشهوره ملي ئې دا ته زاوړو:

## دشالمار میله:

د کندهار په لرغونو میلو کې یوه ډیره شانداره میله د شالمار په

نامه یادیږي چې هغه د نوتو بر وخت کیږي، خلاو ښت شپې او ورځې

دوام کوي که څه هم اوس په دې وروستیو کلونو کې دغه عنعنوي میله د خلکو د خوا څخه د پخوانی

عنعنې او رسم پر ځای کولو په لحاظ بوا ځي په نامه اجرا کیږي او پخوانی مزیت ئې د ما بینه تللی دی خو که هغه د خپلو اجتماعي ګټو

په نظر کې ونیو لو سره دغې عنعنې او کلتور ژوندۍ ساتلو له لحاظه بیرته راژوندۍ او په لرغوني جوش او خروش سره سرته ورسیږي ډیر به ښه وي.

وائي چې د لوی احمدشاه بابا په وخت کې هر کله چې په کندهار کې د سیمو دوبش په لحاظ د ارغنداو سمسوره سیمه او باغونه د الکوزو قبر ته ورسیدل نو د نورو سیمو پښتنو پر ارغنداو یانو د اکښېښودل چې دوی به د میوو په وخت کې چې رسیږي په ګډه د ارغنداو کې میله او د ارغنداو د نوتو او انورو میوو څخه به ورباندې استفاده کوي.

د شالمار د عنعنوي او لرغوني میلې یوه ستره ښېګڼه دا وه چې هر کله به د چادره، خوشکاوي، سپین

بولدک، ارغسان، کلات، پیشت رود (هلمند)، فراه، تیرین او نورو سیمو پښتانه په شالمار کې یوځای شول نو

په ځای به ګډه غزلي ویلي اتڼونه به ئې کول، غیږي به ئې ایستلې، ملي او محلي لوبي به ئې کولې او په دې

ډول به ئې د خپلو سیمو محلي شعرونه، موسیقي، اتڼ، غیږي او نور د یو بل پیژندلي او خپلو سیمو ته به ئې

نقلول او ګډ کلتور ئې تشکیلاوه او هم ئې د ځې پیژندنې او ارتباط د ملي یووالي کړۍ لا ټینګوله.

شالمار بابا صاحب ته نژدې د

ارغنداو یوه سمسوره سیمه او دغه میله د سیمې د ننګوالي له لحاظه څه

وخت سرده ته نقل سوه او په وروستیو کلونو کې په بابا صاحب کې کیدله.

## د باباولي صاحب میله:

اوس د هری جمعي په ورځ ډلي ډلي خلک د بابا صاحب په لوی باڼ کې خوند بیوي او کري ورځ په غزلو، سطرنج،

ورزش، د سازونو په اوریدلو تیروي او ماښام یا پلي او یا په سرویسونو کې خپلو کورونو ته راځي.

ځینې خلک د جمعې په ورځ د ارغنداو باغونو ته میلي پاس او



د پسرلي د شګوفې یوه ښکلې منظره

څوک بیا د سرو بوټو باغونو او باغچو ته د ساتیرۍ
د پاره ځي.

زموږ ولسي شاعر شمس الدین کاکړ
څو کاله د مخه دغه منظره په خپله یوه ځلوریځه
کې داسې تمثیل کړې ده چې وائي:

ګلرخان درومي تن و میلې ته
څوک ارغنداو ته څوک سر بوټي ته
حیران ولاړ ده شمس الدین یم
چې به ځم بوټه که بهو کښېږم ته

## د اخترونو میلې:

زموږ له میلو څخه یو هم د اخترونو میلې دي چې
اوس هم دواج لري او یوه هفته دوام کوي.

کله چه هم دا میلې اوس زیاتره په ښار، د کرز
په (نادعلي)، شاه مقصود بابا، مزار بابا، شیخ قلندر
او ملاحسن کې کیږي خو د پخوا یعنې پنځوس کاله
دمخه دغه میلې په حضرت جي بابا کې او تر
لسو کالو دمخه لا سر بیره پر ښار یعنې کوچنی لښکر
کې کیدلې.
کوچیان، ځوانان او د باغ خاوندان
په دغو میلو کې سازونه اوږدي، غیږې باسي، اتڼونه
کوي، سندرې وائي، ملي لوبې کوي هګۍ جنګوي،
خو اوس بیا د کندهار سینما شاوخوا سیمه کې میله کوي
سینما ته ځي د سرکس او شعبده بازۍ سیلونه کوي.

## د شګوفې میله:

په کندهار کې چې د ارغنداو د رود پر غاړه
سیمه کې باغونه دي هر ډول میوې لکه زردالو،
بادام، شلیل، شفتالو، مڼې، تاک، الوچه، انار او داسې
نورې یو ګڼ شمېر میوې شته، د پسرلي په وخت کې په دغو
باغونو کې د دوو درو هفتو د پاره د شګوفې موج وي
او زموږ د خلکو ډلې ډلې څوک ارغنداو او څوک
بیا د سر بوټي لوري ته روانېږي او د رخصتۍ ورځې
د شګوفې د سیل په نیت په باغونو کې تیروي.
د شګوفې پر وخت چې د پسرلي ځای دی باغونه
ډیر ښکلي او هرې خوا ته ښایسته وي او په تیره بیا د هیواد د نورو
ولایتونو خلک د کندهار د شګوفې سیل ته د لیرو ځایو څخه راځي
او دغې میلې ته د پخوا زمانې څخه په موږ کې رواج موندلی دی.

په همدغه موقع یعنې د شګوفې پر وخت خلک شیرچای یا قیماغ
چای څښي او په باغونو کې ځانګړي د خپلو ملګرو او دوستانو سره خوږې
د شیرچای سره حلوا او کوفته هم خوري.

## د پنځو د کال د اوږې چار شنبې میله:

دا میله د څوار لسو کالو راهیسې زموږ په ښار کې رواج لري
او هر کال په لومړۍ چارشنبې د ښار ګڼ شمېر سړي او ځوانان په
دسته جمعي توګه په بابا ولي صاحب کې سره راټولیږي او دغه
میله کوي.

## د کاهو میله:

کاهو چې د سبزیجاتو له جملې څخه مقوي سابه دي په کندهار کې
د حوت د میاشتې څخه شروع کیږي او په ښار کې د چړبو پر غاړه



د کاهو په پټیو کې پر کټ د کاهو خوړلو یوه منظره

د سکنجبینو سره خرڅیږي او د کاهو په پټیو کې هم لوی لوی کټورې
پرانیزي او خلک هر ماز دیګر ډلې ډلې دغو پټیو ته ورځي او د کاهو
میله کوي.

اوس په بازار کې د یوه کاهو بیه یوه افغانۍ او د سکنجبینو بوتل
بیه ۲۷- افغانۍ دی او هر کله چې خلک پټیو ته ورځي نو د کاهو
خوړلو دوستانه د سړي پر سر دولس افغانۍ څخه اخلي.

کاهو چې په پاك يمنې د پرمنګنات په محلول کې پريولل شي خوړل يې هم زيات لذت لري او هم روغتيا ته ډېره ګټه رسوي

له دغه کبله ښې خلك په سلاته کې کاروي.

## د انګورو ميله:

د کندهار د چار چنو پې پرخه خوشکاوه پولي او په هغه کې ټول انګوري باغونه دي که څه هم

وزددالو پر وخت د انګورو څينې ډولونه لکه روچه او خالچيني پخيږي خو په انګور چې سپين کشمش ورايته دي د ميزان په

مياشت کې پخيږي او خلك د رخصتۍ په ورځو کښې د انګورو باغونه ته ځي او دغه ميله کوي.

په کندهار کښې د انګورو مهم ډولونه روچه، خالچيني، سره کشمش، سپين کشمش، حسيني، عسکري، خليلي، کوچنی لال، غټ لال، صاحبي، قندهاري، خير غلامان، ايته، تودان . او نور دي،

آبجوش د ايتو او سپين کشمش د سپين کشمشو څخه په لاس راځي.

د انګوري باغونو خاوندان که څېل باغونه په اجاره ورنکړي نو د دروغلو د شپو د پاره د څپلو

ملګرو سره د انګورو د ميلې ته ځي او هورې په کشمش خانو کې انګور خوري.

## د انارو او کباب نو ميله:

د ميله بيا د انارو پر وخت چې د مني موسم دی کېږي.

خلك د رخصتۍ په ورځو کې د انارو باغونو ته ځي او هورې کباب

د هغان سره وړي او بهترين خواړه څښې پخوي او د انارو سره يې يو ځای په دستر خوان خوري.

انار زموږ د هيواد ډېره خونده

ور او بهترينه ميوه ده او د هيواد په انارو کې د کندهار انار او د نجراب بې دانه انار ډېر شهرت لري.

خلك په کورونو کې انار ساتي او هر کله چې په بازار کې کميا فته شي نو يې بيا کله د غسې او کله او به کړي خوري.

زموږ انار په خارجي بازارونو کې په ښه بيه خرڅيږي او په دې کلونو کې يو . زياته اندازه يې شوروي اتحاد ته

ورل کېږي.

## د لاندې پلو ميله:

زموږ د خلکو د موسمي کوډيو ميلو څخه يو هم د لاندې پلو ميله ده چې په ژمي کې کيږي.

خلك هر کله چې غوښې يو څه کراني او کميا فته شي نو په څپله کور کې پسونه حلال او غوښې يې وچوي چه دې ته لاندې وائي.

د لاندې په وچولو کې ډېر احتيا ط په کار دی څو په هغه دوچيدو پر وخت د چينجن کيدو څخه او ګرځي.

په ژمي کې ډېره په ميلمستيا هغه ده چه لاندې پکښې پوخ شوي وي.

مقصد دا چه کندهاريان دومره

زړوندي خلك او دپا نيوار شوقيان دي چه د رخصتۍ ورځې د کال په هر موسم کې

په ميله او ساتيرۍ سرته رسوي او په کور کې نه کښيني او ټول کال څپله ستړيا په ميله ليرې

کوي

## زموږ د ميلې ځايونه

د کندهار د ميلې مهم ځايونه

باباولي صاحب، د سرده باغ، باغ پل، د ارغنداو کاسه، شاه

مقصود بابا، شيخ قلندر او داسې نور دي.

علاوه پر دغو ځايو زموږ شوقيان خلك هر ماذديګر په

هو ډالو او پاد کو کې سره راټو ليږي او څپله ورځنی

ستړيا په دې توګه ليرې کوي،

غزلي وائي، خبرې باسي، ورقي او شطرنج کوي.

---



يوه ملګري بل ته وويل

دا د پسرلي باران دومره ګټور دي هر څه چې د ځمکې په مخ کې وده

سوي دي پېرته په سر ونه دا پورته کې.

بل ملګري ورته وويل: چپ سه احمقه ولې داسې خبرې کوې؟

ملګري ووای څه پېښه سوله؟

بل ملګري: احمقه ته لکه چې نه پوهيږې چې ما (۹) ماندينې کړې دي او ټولې هم مړې دي که دا ټول

د خاورو څخه سر دا پورته کې نو په څه خاورې په سر باد کم.

د عبدالهادي «اپاند» لیکنه:

# د کندهار د کلاسیکي معمارۍ یو ګل مړاوی شو

د کندهار ښار د لرغونو دورو د اهمیت په هره دوره کښې د معمارۍ په خاص طرز جوړ شوېدی چې د هغو د شاهکارانو نښې تر اوسه په لوړه غاړه ولاړې دي.

د کندهار ښار پخوا ډېر کښې داسې با استعداده هنرمند معماران روزلي دي چې تاریخ به یې تر ډېره وخته نوم هلانده پرېږدي. د لویو ماڼیو څخه را نیولې تر کوچنیو کوچنیو حجرو پورې، مسجدونه جامع یې او لوی لوی ودانۍ دې ښار د معمارانو د لاسو نښې دي د معمارۍ د لرغوني سبک او طرز چې دلته مروج و د ښار یې مخصوص سبک په نامه یادېږي. دې مکتب ته زیات پیروان درلودل چې ټول یې د دې خاورې وه، دا معماري د دراني تیمور شاه د احمدشاه بابا د زوی د سلطنت په دوره کې وغځېدل او اوج ته ورسېدل.

د کندهار د ښار اساس د لوی احمدشاه بابا په وخت کې ایښودل شوی دی د ښار د ننه نقشه یې د وخت د هوښیارانو سره سم په نوي او عصري ډول جوړه کړه او ډېرې ښکلې ماڼۍ یې جوړې کړې چې تر اوسه یې هم په احمدشاهي ښار کښې نښې پاتې دي.

د وخت د معمارانو څخه چې د دې ښار د تهداب په ایښودو د او کې یې لومړۍ برخه اخستې ده یو هم محمد یاسین خان و. دی د یوې داسې کورنۍ مشر و چې تر ده وروسته تر اوسه یې ټول غړي د وخت تکړه معماران تېر شوي دي.



مرحوم خلیفه نعیم جان

د دې د پاره چې د موضوع څخه لیرې نه شو دا دې د دې کورنۍ یو بل هنرمند معمار در پېژنو چې لږ وخت مخکښې وفات شو.

خلیفه نعیم جان چې زیاتره و به یې نوم اورېدلی دی، خصوصاً سپین ږیري به یې د ژوند سره آشنایي لري، د کندهار یو پوخ معمار و.

دی د عبدالرحیم خان معمار زوی، د محمد صدیق خان لمسی، د عبدالرحمان معمار کړوسی دی او د اسلسله د کندهار لوی معمار محمد یاسین خان ته رسیږي.

چې زموږ په اصطلاح دی د یاسین خان کوسی کېږي. د یاسین خان د معمارۍ له نښو څخه چارسو او د احمد شاه بابا ګنبده ده چې د معمارۍ چارې یې په ۱۱۹۱ هـ ق کال کښې تر سره شوېدي.

خلیفه نعیم جان معمار باشي یو باعزمه معمار و چې د مرګ تر ګړۍ پورې یې د دې فن څخه لاس وا نه خیست.

دی د یوې خاصې سلیقې څښتن و په معمارۍ کښې یې د ښار ایي لرغوني سبک پیروي کول. مګر په هر وخت کې یې په کار کښې د ابتکار فکر درلود. ده پخپل ژوند کښې د دې ښار په آبادولو کښې لویه برخه واخیستل.

نعیم جان د (۱۳۰۶) هـ ق کال د کندهار د ښار د دوهمې ناحیې د بنایانو په کوڅه کې زېږېدلی

(۹ مخ)



## دلوی احمدشاه بابا د زیارت ګنبده چې د نعیم جان د لاس نښه ده

اود بنایانو په کوڅه کښې لوی شوبدی ۰ د پنځلس کلنی څخه ئې په بنا ئې شروع کړی او بدی برخه کښې ئې یوازنی استاد د هغه مرحوم پلار ؤ. مګر په دا وروسته کښې دخپل فکری ذکاوت او استعداد له مخې بدی لاره کښې ئې بوره بریالیتوب په برخه شو او دپلار تر مرګه وروسته ئې د هغه ځای و نیوی.

په نقشه، اختراع، دساختمانی، بېنا تودی اود تعمیرانو په برخه اود کښې ئې بوره لاس درلود.

### د ده د کار نمونی :

د عبدالغنی خان نایب الحکومه په هدایت ئې د اعلیحضرت احمدشاه بابا د ګنبدې د بیا جوړولو او ترمیم کولو تکل وکړ. ځکه هغه ګنبدې څه نقص پیدا کړی او د ړنګېدو په حالت کی وه ددې کار دباره حتی څوک حاضر هم نه شول

چې هغه و نړوی، یوازنی سړی چې ددې د کار دپاره ئې ملا وتړل هم دغه معمار ؤ. ګنبده د سره نوی جوړه او پخپله ئې ترمیم کړه.

په ۱۳۲۰ ش کال کښې دریاست تنظیمیه مرحوم

محمد ګل «مومند» له خوا د میوند د شهیدانو د علم د جوړولو او نقشه کولو دپاره دی وګمارل شو هغه علم ئې د ۱۳۱۱ کال تر پایه جوړ کړی. داعلم دفضا په څېر کښې په شل متره ارتفاع

ولاړ دی، په ۱۳۱۳ کښې بیا د مرحوم «مومند» په هدایت ئې د حاجی میرویس خان نیکه د مقبرې د نقشه کولو او جوړولو دپاره همت وکړ دا ودانۍ ئې کټ مټ په هغه شکل او ډیزاین چې د لوی امپراطور احمدشاه بابا مقبره وه نقشه او جوړه کړه

خو دا ودانی د مساحت له نظره تر هغه کوچنی ده او کار ئې په ۱۳۱۴ کښې پای ته ورسید.

د خواجه احمد میوندی د مزار ګنبده دده د لاس نښه ده

چې په ۱۳۲۷ کال کی ددې کار د پاره د کندهار پخوانی نایب الحکومه محمد یونس خان دخوا ګمارل شوی ؤ.

په نوی ښار کی د احمدشاه بابا لیسې ته نژدې، سره جامع چې په کندهار کښې د کلاسیکی او لرغونی معماری سمبول دی

د هغه کار ئې په ۱۳۲۹ کی شروع کړ دا هم باید ووایو چې بدی جامع کی د ده ورور لعل محمدخان هم لوی برخه لرل. خصوصاً بدی برخه کښې د نعیم جان معماری بې ساری ده.

ځکه د هغه د منارو او د ګنبدې پوښښ په کندهار کښې هیڅ قدرت نه شوای کولای خو دغه با همته معمار د هغه جوړولو تکل وکړ او س که بولیدونکی ورته وګوری و به وینی چې په څو نه ښکلا باندې ئې ګنبده را ګرده کړې ده.

خلیفه صاحب دا قدرت درلود چې د کندهاریانو د لاس په جوړ و سوو خښتو باندې داسې پوښښ وکړی چې د اوسنی عصری د پوښښو سره چې ډیزاین ئې قول صیخ او کانکریټ دی، ورته والی ولری. ددې خبری یو ښودونکی مثال د سراج کانال د سیفون

پوښښ دی چې دا کانال د سردار محمد عثمان خان په دوره کښې جوړ شوی دی.

نعیم جان معمار باشی صاحب که د بغداد ئې سبک یو ځکړه

معمارۍ خو د نوی او عصری تعمیرونو د عهدې څخه په بریالی توګه وتلای شوای.

د خلکو نوی میلان ئې د معمارۍ د بغدادی مکتب څو کاټ

ووداخلو لي او دوخت دخوبښتني سره ئې سمه ودانۍ جوړ وول.

په نوي ښار کې دعطا جان جامع او دعیدګاه در وازې ششك دې خبرې شاهدي ورکوي.

دمعمار باشي صاحب دستاینې وړ کار دخرقې شریفې ترمیم،

بزاین، رنګول او مینا توري ده چې دژوند په وروستیو شپیو کې ئې دې ډېر ضعیفه سوي ؤ او دسختې ناروغۍ سره لاس او ګرېوان و، کار ته دتګ په لار کې به څو ځلې غوځاېدی لا هم په ډېره مینه

کار تر بشپړېدو پورې خپلې وظیفې ته ورتی، څه چې به ئې کولای سوای پخپلو لاسو به ورباندې لګیا شو څو که به ئې نسوای کولای نو به ئې نورو ته د کار لارښوونه کول. په ګچو باندې رازړ ګلکاري او دهغه خاصه رنګ آمیزي، میناتوري او رسامي

ده دپه ذوق او سلیقې ښکاره ندوي ده، دخرقې مبارکې ودانۍ



دمیرویس نیکه دګنبدې پخوانی شکل

چې اوس یوه خاصه او جدا په ښکلا اری رنګونه او کاشي کاري ئې دهر لیدونکي سترګې ور اړوي دخلیفه نعیم جان معمار باشي قوم به تر ډېره وخته ژوندی وساتي. یوه خبره چې دلته دیادونې

ورده هغه دوجدان او یوه سپینې حقیقت له مخې لیکم ممکن قول هنردوسته او هنرپالونکي خلک به ئې دا سره قبوله کړي

که څه هم زه دموضوع څخه څه لیرې ځم خو هیله ده ګران لوستونکي ما ته بښنه وکړي.

هرهنر او هنرمند دیوې قولنې په خپله کې

راڅرګندېږي او دهغه قولنه دهغه روزونکې ده خو ډېر داسې هنرمندان مونږ پېژنو چې دپوره استعداد خاوندان وه مګر دخلکو دبې پروایۍ له امله له نظره لوېدلي دي او څانګې نوم ئې پر خوله ندی راوړی.

خلیفه نعیم جان او دده هنر که څه هم دده په ژوند کښې اوده تر ژوند وروسته په دخلکو پرژبه

باته وي خو دلته دمربوطو څانګو ایماني وظیفه هم ده چې دهنرمندانو دنوم او شهرت په ژوندي ساتلو او دهغه دخدماتو دتحسین په مقابل کښې بې له خوله کښېنني او هغه هیر نه کړي، که ګران

لوستونکي خرقې شریفې ته ورغلي وي، ښایي لیدلي به ئې وي چې دمدخل په ښي لاس کې یوه ډېري لوحه ده او داسې څو کرښې باندې ایکل شوي دي:

«دافغانستان ددیانتشعاره پاچا اعلیحضرت المتوکل علی الله محمد ظاهر شاه په امر او هدایت په ۱۳۴۳ کال کې چې ښاغلی محمد صدیق دکندهار

والي ؤ دخرقې شریفې کار دکندهار اودقول هیواد دخلکو دبسپنې څخه شروع شو کاشي، درخام ډېري، میناتوري او دښېښې کار دو ته ئې وسول او په ۱۳۴۹ کال کښې دنومړي والي په دوهمه

دوره کې سرته ورسید، ښاغلی محمد افضل شیردل سرپرست ښاروال دکار دو سرپرستي او ښاغلی نصرالله خان مهندس ئې فني څارنه کول.»

فکر کوم هغه چا چې دغې ډبرې دجوړولو نیکښه کړېده او په بې انصافۍ ئې کړېده څکه دا او قمیت دقولو ته معلوم دی چې دغه خلیفه نعیم جان به څه تکالیفو او ناسازه وضعه باندې

څو نه کار کړېدی، دلته ډېر څه دده دلاس محصول دی مګر دا حقیقت تر پښو لاندې شوېدي

باته په ۳۱ مخ کې

# ستاسې زړه ستاسې روغتیاده

د حمل ۱۷ چې د روغتیا د بین المللي ورځ وه او سږ کال د دغې ورځې شعار «ستاسې زړه ستاسې روغتیا ده» ټاکل شوی وو او همدغه جهاني ورځ به هغه بوډ د کې د روغتیا د موسسو له خوا او نما نځله شوه. په کندهار کې هم د عامې روغتیا د آمریت له خوا په دغه هکله په ښاروالۍ کې یو محفل جوړ شوی وو د عامې روغتیا د آمر په ګډون څینو ډاکترانو د انسانی زړه په باب توضیحات ورکړل دادی دلته مونږ یوازې د عامې روغتیا د آمر دوکتور مصطفی بیانیه خپروو:



د عامې روغتیا آمر دوکتور مصطفی د بیانیې ورکولو په حال کې په عکس کې د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز زکریا، ښاغلي مستوفي او نورکسان لیدل کیږي

د زړې د روغتیا موسسې سږ کال د روغتیا ورځ «ستاسې زړه ستاسې روغتیاده» تر عنوان لاندې نمانځی.

زما په عقیده په دوه لحاظ دغې ورځې ته د زړه عنوان ورکړه شوی دی:

لومړی: څکه چې زړه تر دماغ وروسته د بدن له رئیسه غړو څخه یو غړی دی.

دوهم: هم په پرمختللو او هم په انکشاف هیوادونو کې د زړه ناروغي یو ډول منځ ته راځي.

موږ و وېل چې زړه د بدن یو مهم غړی دی نو په دغه محفل کې د هغه طبي اړخونو په هکله څه ووایم او یوازې د زړه میکانیکي جنبه څیړم؟

که موږ هر یو پر خپل نبض لاس کېښږدو په منځنۍ توګه

۷۰ ځله په یوه دقیقه کې به نبض کې احساسیږي.

د نبض دغه حرکتونه د زړه د ټه د ریدونکي حرکت له کبله دي چې په لاس کې یې احساس کیږي، دغه حرکتونه په یوه ساعت کې ۴۲۰۰ او په ۲۴ ساعتونو کې ۱۰۰۸۰۰، په یوه میاشت کې ۳۰۲۴۰۰۰ او په یوه کال کې ۳۶۲۸۸۰۰۰ ته رسیږي

که د انسان عمر په متوسط ډول پنځوس کاله اټکل

کړو به دغه موده کې به د زړه ته د ریدونکي حرکتونه

۱۵۵۵۲۰۰۰۰۰ سې تو وېلای شو چې پاک خدای (ج) انسان ته څه ډول عنصر ورکړی دی نو څکه باید د زړې د روغتیا موسسې دغې جهاني ورځې ته د «زړه»

شعار ټاکلی وای. لکه څرنګه چې د مخه مو ووېل د زړه ناروغي هم په پرمختللو او هم مخ په انکشاف هیوادونو کې یو ډول پرمختګ کړی او تر اوسه پرمخ تللي اړیه په دې نه ده بریالی شوي چې په سلو کې سل د زړه دنا روغیو درمل وکړي.

دغه ناروغي د زړه د وماتیز مې ناروغي، د زړه ولا دي ناروغي، د زړه شرائینی ناروغي او نور دي.

څکه چې افغانستان د مخ په انکشاف هیوادونو څخه دی د هیواد اقتصادي حالت دا نه ایجابوي

ی د زړه د ټولو ناروغیو تداوي ...که څرنګه چې ښائي هم هغسې ...سي نو په دغه هیواد کښې په دغه ...کله مهم کار د ناروغۍ وقایوي ...ړخ دی چې باید په ښه توګه د هغه ...عقیب وسي.

آیا څه ډول کولای شو چې ...ځان او کورنۍ د زړه د ناروغیو ...څخه وساتو؟

که د یوه کوچنی ستوني خوږ ...او دغا ښودردونه پیدا شي او یاد ...کوم تنفسي تکلیف سره مخامخ ...شي په تیره بیا که ورو کی روما ...تیزم وي د کوچنی مشران کولای ...شي چې ډیرا کثر په مشوره د پنسلین ...په پیچکاري سره خپل کوچنی ...د زړه د روماتیزم په مقابل کښې ...وقایه کړي په تیره بیا د ناروغۍ ...په مقابل کښې زمینه برابره وي. ...او د پنسلین په تطبیق کښې باید ...زیات احتیاط وکړو.

څنګه کولای شو چې خپله کورنۍ تر ممکنه حده د ولادي قلبي ناروغیو په مقابل کښې وقایه کړو؟

هغو میرمنو ته چې دوی حامله ...وي دا توصیه کیږي چې د شدیدو ...مسکنو او زیات خوب راوړونکو ...دواګانو د استعمال څخه په جدي ...توګه ځانونه وژغوري ځکه چې ...د پورته دواګانو ډیر له بسي او ...دوامدار استعمال له کبله د دوی ...د راتلونکي اولادونه په ولادي ...قلبي ناروغیو او آفتو اخته کیږي

او دا څرګنده ده چې د دغه ډول ناروغیو درملنه نو د هم سره مغلق او مشکل شي.

څنګه کولای شو چې خپل ځان او خپله کورنۍ د قلبي شرائینو د ناروغیو په مقابل کښې د ځان سره د زړه د دیده او ناڅاپه مرګ نه لري، وقایه کړی؟

۱- باید چې د رنی غذاوي او حیواني غوړي قطعي استعمال نه شي.

۲- باید د نشئي شیانو مخنیوی وشي او سګرټ هیڅ استعمال نه شي.

۳- باید د عصبي تشویشونو او هیجاناتو زیات مخنیوی وشي.

٤- لازمه ده چې د پیاده تګ او نورو جسمي فعالیتو او پاکې هوا او اکسیجن له تنفس کولو څخه استفاده وشي.

دا باید هم وویل شي چې د غه ډول ناروغۍ د ۳۵ کلنۍ څخه وروسته زیاتوب کوي او باید بر دغه سن برابر او یا تر دې سن لوړ وګړی د پورتنیو لارښوونو جدي مراعات وکړي.

همدارنګه د محترمو کورنو ایو د زیاتو معلوماتو له پاره لیکو: هغه امریکائي عسکر چې د کوریا او ویتنام په جګړو کښې مړه شوي دي، عمرونه ئې د ۲۵ او یا ۳۰ کلونو په شاوخوا کې وه، د هغوی قلبي تشریح دا ډول څرګنده کړه چې د دوی د زړه شرائین په بخوا کې په تصلب مبتلا شوي وه ځکه هغوی په ژوند کې زیاتي د رنې غذاوي خوړلي، د دې ډول نشو په استعمال او همدارنګه د عصبي هیجاناتو په ناروغیو اخته سوي وه. دوی جسمي فعالیت نه کول. نو په همدې علت د دوی د ځوانۍ په وخت کښې د زړه د شرائینو د تصلب په ناروغیو اخته سول.

اوس که د هغو په مقابل کې د خپل ګران هیواد بزګران په نظر کې ونیسو دا به ښه تر اڅرګنده شي چې زموږ بزګره طبقه په ژوند کښې ډیر لږ د رنی غذاوې خوري او په نشئي شیانو هیڅ اموخته نه دي عصبي هیجانات او تشویشونه نه لري نو ځکه د جسمي قدرت او طاقت څښتنان دي.

پدې اساس که د دوی د غیر طبیعي عواملو په نسبت له منځه ولاړ نشي نو هغوی به حتمي ۹۰ یا ۱۰۰ کلنۍ ته ورسیږي. حال دا چې د ماشیني او مدرن ژوند په غیږ کې داسې ډیر کسان شته چې پورتني سن او عمر ته نه وي رسیدلي چې د عصبي تشویشونو او هیجاناتو سره لاس او ګریوان سي. او حتی هیڅ د دوی څخه دا دغه سن نیمائي ته هم ځان نه شي رسولای.

په پای کښې بیا بیا یادونه کوو، کوم اصول چې پورته بیان کړه شوه هغه د قایوي او اجتماعي طلب زیات اړخونه لري که په سمه سره هغه تعقیب کړه شي دا هیله ډیره ده چې د کورنیو په دننه کښې د زړه ناروغۍ زیاتې نه لږ شي

(پاته په ۲۷ مخ کې)




# د ښځو د حقوقو د ملاتړ لپاره

## د ځوان نسل مجاهده په کار ده


مرتب او تهیه کوونکی پیغله قمر اعظمه کزی


طبیعت رنګ واړاوه او د بشر لی ښکلی ورمی د کائناتو رنګ ته تغیر ورکړ، د حیات او نوی ژوند زیری یې راوړ، پدی ترځ کښی چې بشر لی خاندی څه ناڅه یې د خندا اغیزه د لیکوالو په روح هم اثر وښندی او د کندهار د بیاوړی مجلې د متن رنګ ته یې تغییر ورکړ.

مونږ له دی تحول څخه خوشحاله یو او نور هم هیله لرو چې نوی ځوانان د خپلو نوی ارمانو سره دې ټولنې د دردوار هیلو ممثل شی.

په داسی ټولنو کښی چې بر سیره پر اقتصادی او اجتماعی نیمګړتیاوو د انسانانو تر منځ ټاکلی مناسبات په کامللا بیرا بره ډول تنظیم شوی دی او هر پرابلم یې د اجتماعی رشد او تکامل په مخ کښی لوی خنډ ګرځیدلی دی.

شک نسته چې په دې برخه کښی په موږ د روی ړوی داسی طبقی ته پام واوړی چې ډیری موږ دی

دا پدیخو ادارمانو نو سره مې اوی کیږی او آخر خاورو ته سپارل کیږی چې دا دوی د ژوندانه د ښکلو څخه بې برخی

طبقه د ښځو طبقه تشکیلوی او دغه مساله نن زموږ د ټولنی په شرایطو کښی قرار لری، او موږ هم تر اوسه پدی نه یو بریالی شوی چې د هغوی حق ادا او د حقوقو په ورکړه ای خپل مسئولیتونه دفع کړو.

که وایو زموږ ښځی د اسلامی مقدسو شرایطو له کبله کولای شی خپل انسانی او مدنی ژوند ته د حقوقو او احترام په ساحه کښی د خوښی ښکلی رنګ ورکړی، او د خپلو مدنی قوانینو له مخی لکه د ازدواج قانون د خپل سرنوشت په ټاکلو کښی بشپړ ولواک بوی،

د لسته ده مګر د بدمرغه چې د دا ټولو سره سره بیا هم باید اعتراف وکړو چې تر اوسه زموږ د ټولنی لویه برخه ګلاچې د ازدواج د رشل ته رسیږی د

ژوند دې بدلون په اړه ښځی د ژوند د نیکمرغی او سعادت تنهی نه شی لیدلای څکه زیاتره یې یا جبری ورد بنزې یا په

کوچنیوالی ورکول کیږی یا مخی کیږی او یا د ډیسو پدمقابل کښی په ناځوانمردانه توګه خرڅیږی او د دوی چې دا ټول په ژوند باندی لوبی کیږی

هغه حرکتونه دی چې د ښځو حقوق تر پښو لاندې کوی.

ښځه چې د ټولنی اساس جوړوونکی او موږ ده زموږ په محیط کښی د طبیعی او مدنی حق څخه بې برخې ده.

که چیری موږ د بشری کرام

له مخی او د اجتماعی عدالت منظور د ټولنی د سمون په هکله

د هیواد ددې طبقی ته د دوی طبیعی حق په ورکړه کی ملاتړ و ک او دوی ته د هغو بی ځایه او بې

موجبه حرکتونو څخه چې د هغو ژوند د بدبختی او پریشانی سر مخامخ کوی، نجات ورکړی و ا د دوی د تنویر په هکله مرسته ور سره وکو، ګواکی خپل ایمانی او وجدانی وظیفه مو ټولنی د وحدت، پر مختګ، ا د فاه په منظور تر سره کړی به ده.

---

## پاملرنه

ګرانو میرمنو د مجلی د میر برخه ستاسی د هیلو هنداره ده چې ستاسی خوښتنی، انتقاد او د ښځو په هکله ډول ډول مطال خپروی، نو ددې د پاره چې دا بر ښکلې او په زړه پوری وی د مجلې مو میرمنو څخه هیله کو چې د مضامینو او مطالبو دا لیږلو نه موخوښ وساتی.

## دماهي یو ډول کتغ

د پخېدو مو ده ۴۰ دقیقې
دشپږو تنو دپاره ضروري
مواد:

شپږ دانې ماهیان چې وزن يې

۱۶۰ گرامه وي، ۱۲۵ گرامه غوړي، وچې سوې ډوډۍ (که د سیلو ډوډۍ وي ښه به وي) یو کاچوغه گشنیز، مرچ، مالگه او لیمو په کافي اندازه (دسیلو دډوډۍ مغز دمالیدې په ډول)



د پخلی طریقه:

وچه سوې ډوډۍ میده کړی او دمالیدې سره یې یوځای کړی څکه ددې مخلوط په واسطه ماهیان بیله دي چې تودشي پخیږی.
دماهي دننه تو ل برده لیری کړی ښه یې بریې مینځی او شمزۍ یې سره لیری کړی، مالگه او مرچ پکښې وپاشی.
په کړایی کی غوړی پر اور کښیږدی ماهیان چې مالیده مو

هم پکښې اچولي وي
په میده سوي اوړو کې ښه ووهی او په غوړو کی یې واچوي ورو سته تر لسو دقیقو
سره کیږي بیا یې په جاذب کاغذ کی په غوړی کی کښیږدی او دغوړو تر وختنه پوری یې پرتاووده
ځای کی وساتی. دغوړو په وخت کی یې په غوړی کی واوړی
و لیمو حلقه بانندی کښیږدی.

ژباړه:

# دمصر دازدواج دوه زره کلن اسناد ژباړه سوه

دغه اسناد چې دپخوانی مصر څخه لاس ته راغلی دی، دوه زره کاله پخوا مربوط په یوه سیمینار کی ژباړه کیږی.
دغه اسناد دمخه درنو پاړو نو څخه کاږل سوي دي کوم چې په پخوانی مصر کی د ازدواج له لاری خلکو ته پیښیده.
دمصر دغه اسناد د (۱۹۲ څخه تر ۱۶۳) کاله ترمیلاد دمخه دی.
په هغه وخت کی یو نارینه، مکلف و چې دواده په وخت کی زیاته اندازه پیسې د ښځې ته ورکړي او دطلاق په وخت کی دغه مبلغ څو چنده کیدی چې نارینه به یې دوقر سره مخامخ کاوه.
دغه مطالب په ۱۴ بیلو بیلو سندو کی درج شوي دي او المانی پروفیسر لودکسن په ۱۹۷۰ کال دقاهري په موزکی موندلی او دهغان سره یې المان ته راوړی دی چې دادی اوس یې په ترجمه لاس پوری شوي دی.
دغه اسناد په ۱۹۶۳ کال دقاهري په ۴۰۰ کیلو متری یوه ځای کی لاس ته راغلی دی.
دغه دوه په ۱۹۳۸ کال هم څینی شواهد او لیکنی دعکسونو سره لاس ته راغلی وه چې اوس پرهان په دی هیله دی چې دهغه دعکسونو دپیژندنی له لاری
نورنوی شواهد هم لاس ته راوړي.
دغه عکسونه او سندونه څه نه څه شپږ پېړۍ پخوا دمصر دخلکو دژوند دوره ښئي د المان دجمهوریت د بلنې په اساس پروفیسر مصطفی دمصر لرغون پیژندنی رئیس د دوو میاشتو دپاره المان ته ولاړ څو داسنادو په ترجمه کی دهغو سره مرسته وکړي چې تر اوسه پوری څه دپاسه په سلو کی اتیا ژباړل سوي او په سلو کی شل تراجرا لاندی دی او گمان کیږی چې دغه ژباړه به دپره موده په بر کی ونیسی.

زموږ د ژوندانه یوه څنډه: د انځوروال په قلم:

# گاډی زموږ د چکر وهلو او هواخوری وسیله ده

گاډی چې زموږ خلک ئې بګي هم بولي زموږ د خلکو د نقلیې او چکر ښوائي وسیله ده او د شپېتو کالو راهیسې زموږ په ښار کښې د گاډي چلول رواج لري او اوس هم شوقیان خلک په گاډي کښې د ماز دیګر له خوا چکر وهي او هواخوري کوي .



شپېته کاله پخوا چې کرندي او نو د موټرونه زموږ په هیواد کښې نه وه نو گاډي خال خال پیدا کېدلې او لومړی ځل هغه پخوانی گاډي چې څلور اربېزه وه او دوو اسانو به کشول، د بوي د دې سر بوټي خونې پاڅېر وه او گاډي وان به ئې د باندې ناست وو پېر ولېږ و کسانو د د لوړي ، خو ورو ورو ئې د چکر وهلو او د ښه نقلیه وسیلې شمېر ورو ورو په کندهار کښې زیات شو تر دې اندازې چې اوس دا ښکل له هغه څلور سوه گاډي په کندهار کښې سته .

پخوا چې زموږ په ښار کې د ښادي سرویسونو او ټکسي موټرونو شمېر لږ و نو خلکو به لیرې او نژدې سیمو ته په گاډي کې تګ راتګ کاوه او اوس هم

گاډي ډېر ارزښت د لاس نه دي ورکړی او خلک په فرعي او ورو سړکونو باندې په گاډي کې ځي او له هغه څخه استفاده کوي .

که څه هم زموږ د هېواد په ځینو نورو سیمو کې هم د گاډي چلول رواج لري خو د کندهار گاډي د ښکلا او رنګ له حیثه د نورو ولایتونو تر گاډیو ښې دي گاډي ئې نوي، اسان ئې ډېر ښکلي او ټکره او ځینې تجملي ګلان او زنګولې پرې ځړدي.

زموږ د ښار گاډیو د خارجي سیلانیانو توجه او علاقه ور جلب کړې او هغوی هر کله په گاډیو کې چکر وهي او کله کله پر اسانو هم سپرېږي .

اوس یوه ډېره ښه گاډي چې بهترین آس و لري بیه ئې له څلوېښتو څخه تر پنځوسو زرو افغانیو پورې رسېږي او ځینې گاډي‌وانان دوه او دری اسان هم ساتي او د یوه آس د خوراک خرڅ د ورځې سل افغانیو ته رسېږي او په

غالب گمان هر گاډي به د ورځې د دې سوه افغاني عایدات لاس ته وړولی .

زموږ زیاتره گاډي‌وانان خپلې گاډۍ په خپله چلوي او ډېر لږ کسان د بل چا گاډي‌واني کوي .

که څه هم د گاډي چلول هیڅ مهارت نه غواړي خو یو آس چې گاډي ته نوی اچول کېږي د هغه رامول او گاډي په چلولو اموخته کول او ساتنه یو څه مهارت او تکلیف په کار لري .

آس زموږ په هیواد کې د پخوانیو زمانو څخه رواج لري او خلکو به پخوا د اسانو څخه استفاده کول

(نور په ۲۶ مخ کې)

# ولوپ ګلونه

تهیه کوونکی: عبدالله نجیب

ښکار ندوی غوري:

## پسرلنۍ بولله د غټولو جنډې

د پسرلي ښکلونکی بیا کړه سینګار دونه
بیا ئې ولو نل په غرونو کښې لالونه
مځکه شنه لاښونه شنه لمنې شنې شوې
طیلسان زمردي واغوستله غرونه
دنیا ن مشاطې لاس دمچید ودي
مرغلر و باندي د ښکلل بڼونه
د غټولو جنډې خاندي وریږي ته
زرغونو بڼو کې ناځي زلمي چونه
لکه زاوي چې سودګیك په تنډی وکا
هسې و ګاڼل غټولو سره بسولونه
مرغلرې چې اوروو څو نو لیه
په خلائي شوه ژاله څپاره د ښتونه
زرغونو مځکو کښې خل کالکه ستوریه
چې پر هسك باندي ځلیږي سپین ګلونه
سپینې واورې ویلیده کاندي بهیږي
لکه اوښې د مین په ګریوانو نه
هر بلو دقې والي بهانه خاندي
له خوښیه سر وهي له سینګی ونه
هر بلو د ګلو دیوم دی لو نلي
ته وا ژاغله له ختنه کاروانونه
د مسیح په پو به مړو ژوندون بیامونه
پسرلي مګر مسیح شو په پو کړونه
له مړو خاوروئي آغلی ګل راو پوست
وچ بید یاو غرئي کړ له جنتونه

سړی جاجی چې رامښت کړ دامښتګرو
ګهیځ چو ئې چې په بڼ و کاڼغونه
په بر بڼ چې ږغ د چوڼیو اغوږ ږیده سی
ته وا چنډی سره یړودی اشکلو نه
دژلما قاپی راغلی دی پر جنډیو
لکه پیغله غوټۍ کاندي مکیزونه
د پو بلو مخ سود کړی پسرلی دی
بود بل په غاړه اچو ی لاسونه
د هندارو په څیر غرونه سپین وږ نګن دي
چې پرواړو باندي ځلو کالمرونه
په غورځنګ غورځنګ له خوالي څکونه باسی
لکه شنې هاتی شڼا کاندي سیندونه

پر پوړنۍ پسرلني بولله د کندهار د ځینو ستړو شاعرانو او لیکوالو هشاره:

---

## د نوروز زېرى



پوهاند عبدالحی حبیبی

بیا له بڼه پورته کیږي نغمونه
ته وا راغله د بلبلو بهیرونه
بڼ زرغون سو غر زرغون له پسرلي سو
و نو ځان کړ آراسته په بسولونه
د پسرلي نسیم الوتی دی پر ګلو
که پاشلي په فضا کې دي عطرونه
را د غرونو په لمنو کې لالې دي
که پر اته دي شهیدان سره کفنونه
د غرزو پر کوراتي د پیغلو روغ دي
که د ښکلیو زر کو راغله کتارونه
د پسرلي شمال چې زیری د ګل راوړ
پری سمسور سو له بید باوچ ږ کړونه
دختن کاروان پر دې بید یا تیریږي
که راغلي دي د مشکو کاروانونه
را نڅا د پیغلو چو نو پسر مرغه ده
که کبلي پر سبزه ژاروهي قوبونه
څو چې ستړګی کاروی زرغونه ښکاري
غر بید یا، بڼ، غونډۍ او دامانونه
غټول زیری د نوروز کاو د بدې ته
له خوښیه ډیدې سپړی ګریوانونه
خې ترنك چې بهیده کا ته وا لولي
د متی نیکه د مینې د یوانونه

ار غند او باندی نشار د شګوفو کا
د پسرلی منظر هسی د لړ باندی

تل تر تله او سپین د طنبور دان او سی
دژوندون بڼ دی سمسور سره پرما ګرانه
د قدرت لاس دی تل ستا په ښکلیدو دی

په نشا نشا هلمند کړی غوړځنګونه
چی به خواند ئی نه مړاوی سترګی ژړونه

قول او قرات دی پسرلی وه په کاوونه
موږ دی ستا یو ته دی ژموږ ئی څو چی یو نه
تل د دان او سه په سمیه له پښتونه

---

## د پسرلی ناوی

بیا ئی د څکل له کم خمه ډک جامونه
له مستی نه ئی ساغر له لاسه پر بوت
له خندا ئی د غا چوڅلا پر ښښنا شوه

په ملال ملال کا نه چی ګوری بڼ ته
د بادام ونی چی شنډی وی په غرو کی
نه وا خپل د ژلمیتوب کالینه ایسی

دژلما په میومستی ځوپ ګوره
هم څفلا کا هم نشا کا هم شما کا
له سپیرو غاړو بامی ګلونه با څی

دریدی جنډو وډمانی تر سپږمو شوه
هلمند بیا په څپو راغی غاړی غاړی
د پسرلی ناوی د دپنزی ودانی ته

دا د مسک بیغله چی ناڅی له جونه
په څو شا څکو ئی کړه مست سپیره ډاګونه
مرغلری لونوی پسر سنګیږ ونه

له هوسه وز ته خولی سپنی ګلونه
ور په غاړه ئی د جنډ وکړه هارونه
چی خپاره ئی کړه پر دښت شنه میزرونه

چی خپاره ئی اوربه لوړ کړه اوربلونه
چی تر څنګه کړی درو بوسپین امیاونه
چی پسر تیر سی د جنګیو پاونه

دا چی بیا څیده هوسی له میرتونه
چی ور غاړه غری شوه څپان ایزونه
مخ کا ته اخلی د غرو سور ګی لالونه



ښاغلی بېنوا

---

## د ګلو کاروانونه



پوهنوال کندهاری (رشاد)

بیا پسرلی په ګلو پسلل ښاخونه
چی بری د اشی د شنډی آغلی ناوی
په انګړ کښی شوی دبڼ داختر ورځی
چی شامل شی دا دعیش په هنګامه کښی

هشا طی د طبیعت په لاسو ونو
بورا ګان ئی په هوس ځی دست بوسی ته
په لمنی کښی ئی ګنج دی د ګوهرو
مرغزار بندی په کاسو کښی د یاقوتو

راخوری شوی دختن نافی د مشکو
د نسیم اری څپی دی په هوا کښی
دا غو قی چی په شونډانو کی مسیږی
محو مشه زیاد و باسه ته هم ګل شه
تش احساس او تخیل مو په درد ته خوږی

په ریدی باندی ئی د ښکلل د بیتونه
په بیدیا کښی ئی خپاره کړه مخملونه
د ګلا بو بوټو سره کړه لالا سونه
بیا بزغلو کړل پر سر زرغون شالونه

وا غوستل د ژمرد په څیر ختونه
د پردیسو ګلو د اغلل کاروانونه
که خوا ی کړه مرغسنی پری لالونه
پر غټول چی شی د پرخو بارانونه

که هوا پر مچکه ولو ال عطرونه
د ګلونو ئی و مخی ته تا څونه
را کوی په رمازه دغسه پندونه
چی دی ماغوندی لوړو کا صفتونه
ژوند په کار لری اخلاق او عملونه



ښاغلی نوری

## سره خالونه

پسرلی پر مځکه د لوی دل گلو نه
تور و غر د کښې سره گلو نه هسې ښکاری
دېښيم به دود چې لخ لېې ولا ږده
زړ غونه اوری يې پسرلی ور اوروله
او لونو ته يې اوريځ واودون ورکړې
ښيم رخه اوس له دې سره هم کاندی
چې به سيل د پسرلی د گلو کړ زی
ځينې دوه اړې زلفې يې کاله گلو
چې گلو نه ځولوی ښند ری واڼې
د ښکارندوی غوړی پر بيت مې شعر دوی
د پښتو د شعر ستوری (نوری) نه دی

په گلونو ښا يسته کړه سمه غر ونه
لکه ښکاری تورو اوربل کښې سره خالونه
بيله بانو د سپين ور نو ښا خونه
په شنو بانو سر يې ورکړه سينگارونه
چې په ژمو هيله نه وه له ژونده
ژمو يې په خوک دا ښوی سرتو نه
ځمې گل بر ښکړی ږدی براو د بل چو نه
خوک په غاړه د گلو نو کالالونه
شرمنده کړل د بلبلو آوازونه
هو مره بس دی نور دی ځکه کښا بونه
چې د ستورو په شان جوړ کې ښه شعرونه

## د بلبلو شخول



ښاغلی نجيب

بيا د بڼ له لوری راغله د يو موټه
دا نسيم بو لم که ساه د انبساطده؟
زاهدان دا وو نيل له صومعو ځکه
په بڼو کښې انځوال شو له د گلو
هله زرد ميخانې ولوړ ته د رومه
هغه جام چې له رښيتو ميو ډک دی
بهار د رنگ زمرد ی مځکې ته ور کړ
ارغوان ور ته حيرت په زنگيدو کړل
د بلبلو نو د شخول دی په بڼو کې
پسرلی طرا وت ور کړ دماغو نه
په صفت د پسرلی کښې يې انشا کړل
ماهم و اخيست ددوی بل يې روان شوم
ستر گې وبر آته (نجيبه) پسرلی دی

بر عالم باندې يې وشيندل عطر ونه
ته وراغی مسيحا يو کې دو حونه
گهيځ نغو دی د چړو ډيو آ وازونه
ځنې اخی د عر فان عميق در سونه
د ساقي له لاسه واخله ډک جامونه
په ښکلو يې له حاله ووزی زړونه
بيد باشنه شوه راغی شنې شوی شنه شوه غرونه
په راغو کښې چې کښلی وهي ځو بونه
ته وراغله له هر لوری لښکر ونه
شاعر انو د سوز وويل شعر ونه
اد باو د ښکار اکه مضمو نونه
سره د مې پيو دل د غه ځو بيتونه
په ځير ځير تر نظر تير کړه دا نقشونه

## کندهار د ځينو شاعرانو له نظره



دا ست پښتون له کندهاره تر اټکه
سره يو د ننگ په کار يو آشکار
(خوشحال خټک)

ښايسته کندهار د ... ياد و مه
په هير يې ... هير و مه
(لوی احمدشاه بابا)

کندهار يې په جمال جنت نظير کړ
بغداد او سمر قندمې زړه زخمی کړ
د بو ماته تر کشميره تر لاهوره
خوا ... باغم په زيارت د کندهار
(عبدالرحيم هوتك)

د حنان قرار ... د لبره
چې رسوا کړ دا ستا عشق په کندهار کې
(ميرزا حنان)

ليکوونکی: محمد نور د احمدشاه بابا
د ليسې د دوولسمې ټولګی زده کوونکی

# ناکامي په ژوندکی عیناً کامیابي ده

اوسنی ځوانان باید ټول په دغه خبره باندی عقیده ولري چې د ژوندانه په ټولو کی د خپلو کارونو څخه د نتیجی اخستلو په لحاظ د دوو حالاتو د لرلو څخه بې برخی نه دی یعنې همیشه (مثبت او منفي) قطبونه چې یو یې عبارت د کامیابۍ او بل یې عبارت د ناکامۍ څخه دی د دوی مخ ته راځی.

هر ځوان چې وغواړی د ژوندانه د مقصدونو څخه په یوه مقصد کی بری بالی تو حاصل کړی نو همیشه یې هیله داده چې د دغه مقصد

یوه مثبته نتیجه ور کړی.

خو کامل ځوان هغه دی چې د مثبتی نتیجی (کامیابی) په څنګ کی یې د منفی نتیجی (ناکامی) څخه ځان وژغوري، او همدا رنګه

هغه وخت چې یو ځوان وغواړی کامیابي لاس ته راوړی باید په عین حال کی ناکامی ته هم د کامیابۍ د زینې په ستر ګه وګوری ځکه که یو انسان


ښاغلی محمد نور

د ژوندانه په ټولو کی د ناکامی سره مخامخ شوی وی نو هغه وخت چې دی د کامیابی سره مخامخ شی د خپلی کامیابی څخه به پوره پوره خوند اخستلای شی ولی چې د ناکامی په وخت کی ټول هغه بدوا ونا وړو چارو ته متوجه شوی دی چې هغه شیان د ده



تهیه کوونکی احمد «راشد»

د ناکامی موجب ګرځیدلی وي. نو هغه وخت چې یې مثبته نتیجه (کامیابی) لاس ته راوړله نو د همیش د پاره د مثبتی نتیجی په وړاندی د منفی نتیجی تاریکی مطالعه کوی او عواقبو ته یې متوجه هم وی.

دغه رنګه ډیر و پوهانو د خپلو تجربو په لړ کی ثابته کړی ده چې د نا کامی څخه مایوسی نه بوا ځی دا چې انسان د کامیابی له لو څخه بې برخی کوی بلکه د انسان په وجود باندی هم ستر تأثیر لری. د پورتنی موضوع د وضاحت د پاره یو دا او شمع د تمثیل وړ ده ځکه یو دا په ډیرو زحمتو او تکلیفو نو یعنی د خپل ځان د سوځلو سره سره بیا هم د خپل کلک عزم او ارادی څخه نه اوړی تر څو چې د شمعی سره ځان وصل او په خپل مقصد کی بریالی توب لاس ته راوړي.

نو هر ځوان ته لمړی د لازمه ده چې په هر کار کی کلک عزم او استقامت ولری، ځکه د استقامت او کلک عزم په واسطه سره په ډیر کی ډیر خلک تر ناکامیو وروسته د کامیابی د دروا سره مخامخ شوی دي. تاریخ د دغی خبری ښه ترا شاهد دی.

د پښتنو یو ځوان ادیب د نا کامی او کامیابی په باره کی خپله نظریه داسی ټول څر ګندوی:

د ژوندانه څخه مه مأیوسه کیږی، هغه ژوند کامیابه ژوند نه دی چې یوازی کامرانی ولری! هغه خوشحالی سړی نه خوشحاله کوی چې د دردا و خوږ په قیمت نه وی راغلی سوی د ورځی رڼا د شپی د تیاری څخه ده، د لید و خوند د بیلتانه په غم کی او د ژوند فتح په شکستو نو کی ده! هغه څوک چې د خدای څخه ابدی راحت غواړی د غوی د یوه داسی جنت آرزو لری چې هلته د لید لو د پاره دستر ګو خلاصو لو او د اوریدلو د پاره د غوږ اېښودلو ته هیڅ حاجت نه وی، او هم تر څو چې ژوندوی برکت د حرکت په نتیجه کی حاصلیږی ځکه د یوه ځوان کامل سکون

باته په ۲۵ مخ کی

د احمد شاه بابا د لیسې د ۱۱ ټولګي زده کوونکی
سید عبدالقدوس «قدوس»

# دناأهله کسانو د مجلس اغیزه

انسانانو ته د انتقال وسره
م د خپل محیط سره سازش یا توافق
ی د بیولوژیکي تاثیراتو څخه
و مهم تاثیر دی، حاصلوی.

پورته موضوع ته د اوږدول
ضاحت ور کوو چې انسان یو
جتماعي مخلوق دی نو ځکه د خپلې
ټولنې سره توافق حاصلوی او
دې توافق منځ ته د اتلو په اخلاقي
ېکنو پورې، اړه لري. یعنې
همدغه اخلاقي فضیلت دی چې
انسانان دې ته اړ باسي چې د ټولنې
سره سازش وکړي.

همدا ز ځینې او رشیان هم سته
لکه د مجلس تاثیر، په کوچنیوالي
کې د نیکو عاداتو پیدا کول،
د لویو او سترو کسانو د حالاتو
مطالعه کول او د اخلاقو د علم
مطالعه چې د یوه انسان په ژوندانه
کې ستر تاثیر لري.

ژ دلته غواړم چې یوازې
او یوازې د مجلس د تاثیر په باب څه
ووایم.

هر کله چې یو کوچنی نړۍ ته
راځي او د زمانې په تیریدو سره
د کوچني فکرونه او کړه وړه
په ژوندانه کې ځانته ملګري پیدا
کوي. نو دې د دغو ملګرو د خبرو
او مجلس څخه حتماً متأثره کیږي
او هم د دغو د عملونو انعکاسات
ددوی په دماغ کې ځای پیدا کوي. یعنې
غواړي چې د خپلو ملګرو په شان دوایي،
وګرځي، وچښي، وخوري، او غواړي
او ددوی د نورو ټولو کارونو څخه
پیروي وکړي.

په همدې اساس که یو ځوان د داسې
ملګرو سره وګرځي چې هغه بد وي

او هم پخپله دې په دې د یو هیڅ چې په
رشتیا هم هغه بد او نا اهله کسان دي
نو بیله دې څخه چې د هغو څخه ځان وژغوري
ددوی سره زیات په تماس کې سي.


ښاغلی قدوس

دزیاتي مودې په تیریدو او ددوی سره
دزیات تماس له کبله دغه ځوان مجبوره
کیږي چې په آخره کې ددوی په شان
سي. که څه هم په لومړي سر کې
دغه ځوان ددوی څخه یو اندازه کرکه
کول مګر په دوستي وخت کې یې کرکه
کراړ کراړ لیرې او خو ددوی کردار او
اعمالو له پوره ننګه سي.

هر کله چې دغه تاثیر یو ستر تاثیر
دي، نو عملو مړه ده چې دي ته سي
کولای چې په آسانۍ سره دې ځان
څخه خلاص کړي.

نو که یو ځوان د بدو ملګرو
سره ملګری وي ددې اخلاقي فضیلت
او نېکنو ته حتماً تاوان رسیږي
او په دې توګه د اخلاقي فضیلت

د منځه تلل د ځوانانو د ژوندانه
په بیلو بیلو برخو کې ستر تاثیر
ښندي.

او سني ځوانانو ته لازمه
ده چې د دغه ډول نا اهله کسانو
د ملګرتیا څخه چې د هغو د خبرو
او بیانو د وکړو تأثیر بر ده باندې

کیږي په ټینګه پرهیز وکړي، ځکه
نه یوازې د اچې ددې پر اخلاقي
فضیلت باندې تأثیر لري، بلکه

د ټولنې پر نورو وګړو هم زیات
تاثیر کوي.

په دغه باب د پښتو ژبې یو خوږ
ژبی شاعر (عبدالحمید) هم په خپلو

شعرونو کې ننني ځوانانو ته
داسې وصیت کړی دی:

هغه د رنګ اخلي جامه چې په خم
کښېوزي
سور که سپین کا زرد کا شین
دی که سیاه

هر مجلس لري اثر د ښو او بدو
د امتل دی د ښتینو په ښتیا
(پاته په ۲۵ مخ کې)



# تعلیم او تربیه

تهیه کوونکی پرېښنا بخرکی

انسان په خپل ژوند کی ښوونی او روزنی ته اړ دی، ځکه چی په ژوند کی د طبیعی حوادثو سره مخامخ کېږی قانونی مسئولیتونه ورته راجع کېږی او په ټولنه کی اخلاقی روش ته ضرورت پیدا کوی د دې دپاره چی موږ په بریالی توګه ژوند وکړو نو لازمه ده چی

د طبیعی پېښو او حوادثو په مقابل کی قدرت او قوت ولرو او په ټولنه کی د قانون په پیروی کی اجتماعی وجایب را معلوم وی. پر دی اساس

نو موږ مجبور یو چی پوه تعلیم ولرو او بل تربیه.

تعلیم څه شی دی؟ او روزنه څه ته وایی؟

تعلیم موږ د خپلو درسو د زده کړی او خارجی مطالعی او مشاهدی څخه ولاس ته راوړو، د پوهی د زده کړی په واسطه د انسان معلومات ډېرېږی او د هغه معلوماتو په

اساس سړی خپل ځای په ټولنه کی پیدا کوی او د ژوند د بقا په هیله د ځان او نورو خلکو دپاره وسایل لټوی.

مګر دا خبره هېره نه کی چی یوازی د معلوماتو زېرمه د سړی په درد نه خوری، بلکه په ځان کی یو داسی خوی باید سړی پیدا کی چی د هغه خوی په ذریعه سړی

د دې توان ولری چی ښه کارونه وکی او بدو نه کی. څوک چی په ځان کی دا قدرت ولری چی ښه کارونه وکی او د بدو څخه ځان وژغوری، نو موږ ویلای سو چی

پلانی د ښه تربیی خاوند دی. تربیه، هغه وخت څوک پیدا کولای سی چی تل سړی خپلو کړو ته ځیر وی او د ځان یا نورو کسانو په کړو

کی د ښه او بد توپیر وکی.

ځینی په دې عقیده لری چی تر علم تربیه ښه ده خو د ډېرو پوهانو فکر داسی دی چی که د علم سره تربیه ملګری سی، د سړی څخه

نابغه او نامتو شخصیت جوړوی.

نن ورځ که موږ د ډېری اوبو سیاستمدارانو او پوهانو ته ځیر سو نو په ادعا د پوهانو دغه بیان

تصدیق وکو.

محترم وروڼو او خوندو، دا ځکه چی سر له نن څخه د خپلو ځانو ته ځیر سو

او هره ورځ لومړی د خپل عمل او کردار او بیا د نورو د عملو پلټنه وکو او په

ښه خوله د هغو په اصلاح لګیا سو - او هم

د خپل منظم د پاره یو داسی پروګرام او تقسیم اوقات جوړ کو چی هم د مکتب

مضامین زده کو او هم خارجی مطالعه وکو.

د کندهار کتابخانه چی د اطلاعاتو

او کلتور په مدیریت کی ده، سهار او ماز دیګر ستاسو د دغه ضرورت د پوره کېدو په خاطر خلاصه ده ذوق خاوندان

د هغی څخه استفاده کولای سی.

که سړی د خپل ځان خارونکی

او لار ښوونکی سی په ډېره لږ موده کی په علاوه پر دغه چی د ټولنی یو لوی سړی به وی، بلکه پر طبیعی مشکلاتو او د ناپوهی پر ظلمت به هم غلبه ومومی. ژوند به خرند ورته ښکاره سی او د فاتح په

شان به پر هر مصیبت او آفت بریالی

وي.

# آیا پوهیږی؟

دآمو سیند چی د پامیر څخه سرچینه اخلی، د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ د (۱۲۰۰) کیلومتره په اوږدوالی طبعی سرحد جوړ وی

د دی سیند مشهور معاونین یو د کوکچی سیند او بل کندز سیند دی چی زموږ له هیواد څخه د آمو په سیند ورګډیږی. د آمو د سیند پر غاړه د شیرخان بندر د افغانستان او شوروی اتحاد ترمنځ مهم تجارتی بندر دی.



آیا پوهیږی چی اولین اخبار څه وخت او چیری منځ ته راغلی دی؟

اولین اخبار په ۹٤٥ ه ش کال کی په (وینز) چی د (ایټالیا) یو بندر دی نشر شو.

او هرچا به په یوه کوچنی سکه چه «کازتا» نومیده هغه رانیوی.

د اخبار چه نوم نه درلودی نو سکه ای «کازتا» نوم پر ایښی و او څه وخت وروسته دهغه نوم په «کازت» بدل سو.



آیا تاسی دا هم پوهیږی چه د ویتامین (بی) لږوالی په بدن کی څه ضرر لری او د اماده په کومو مو غذاو کی سته؟ که ویتامین (بی) زموږ په بدن کی لږ سی په نتیجه کی زموږ اشتها کمیږی، دمعدی نا آرامی، دقبض ستونزی او د اعصابو ضعف پیدا کیږی او د بدن و ده لږیږی. د ویتامین (بی) په شیدو هګی، اینه، غوښو او ترکاری کی په ډیره اندازه سته.

# پیغله سعدیه د خپلی ټولګی یوه تکړه زده کوونکی وپیژنئ

کله چی زموږ په ګران هیواد کی د ښځو د نهضت اساس او بنسټ ایښودل کیدی عین په دغه وخت یعنی په ۱۳۳۷ کال کی چی لاتر اوسه یوری خلکو د ښځو په معنوی ارزښت په هغه اندازه چی لازمه وه نه پوهیدل چی سعدیه د محمد کریم



پیغله سعدیه

اخکزی لور دنړی په پرمخ ستر ګی ورڅی کړی. څرنګه چی بد بختانه تر اوسه زموږ په ټولنه کښی داو زیږیدنه خلکو په بدفالی نیسی نو ددی د باره چی مور یو به خبره نه سی یو د بله په بو سپاری ویل کیده چی اریانه لور ده خو دا و چاته نه وه معلومه چی ددی په نیک قدم او نیک فال د افغانستان دښځو د نهضت خښته په هم دغه نیټه ایښودل کیږی

پیغله سعدی خپل د تعلیم لومړنی دوره دملالی په لومړنی ښوونځی کی سرته رسولی ده او په ۱۳۵۰ کی د زرغونی لیسې په اومه ټولګی کی شامله سوه او اوس په خپله ټولګی کی اول نمره ده.

پیغله سعدیه د مکتب تر درسو د مطالعی سره ډیر علاقه لری هر وخت خپل د فراغت په وخت کی مطالعه کوی او د خپلو درسو د ویلو د پاره ئی ځان ته تقسیم اوقات جوړ کړی دی.

پیغله سعد یه هر وخت هڅه کوی چی ساده ښځنی کالی واغوندی او د ښځو د پاره ساده ګی په زینت ګڼی.

# دلویانو خبری

په نوم د جسم سنګار او د روح قوت دی. (شکسپیر)

د محتاجانو حاجت سبا ته مه پریږدی ته څه پوهیږی چی سبا به څه پیښه سی؟

(افلاطون)

د اخلاقو خاوندان د ملت د روح ګڼل کیږی. (امرسون)

په نړی کی هر څه ایجادات چی کیږی په هغو کی الهام د بانی د انسان لارښوونه کوی.

(فرانس بیکن)



د مجلې د ادبي مبصر په قلم

# د کندهار نامتو خطاط
# قاري عبدالعزیز خان
## له جهانه سترګې پټې کړې

سږ کال د حمل په شپږمه نېټه کندهار یوه بله هنري او ادبي څېره له لاسه ورکړه، د هنري شخصیت چې ژوند یې د ټولنې د خدمت د پاره وقف کړی و او په دې لار کښې یې د ژوند تر وروستي شېبې پورې هېڅ ستړیا او ستومانه نه لیدل، مرحوم قاري عبدالعزیز و.

مرحوم قاري صاحب یو ډېر پرهېزګاره، متقي، غریب پروره او میلمه پالونکی شخصیت و، هر څنګه چې دی په یوه غریبه کورنۍ کښې زېږېدلی و نو په دې اساس یې پر غریبانو زیاته پېرزوینه درلوده.

دی په مشاقۍ او خطاطۍ، فقه او دري ژبه کښې د پوره استعداد خښتن و په شخصي او خصوصي توګه یې تحصیل




د قاري صاحب د خط یوه نمونه

کړی او فن یې د کمال درجې ته رسولی و او په شپږو بېلو بېلو سبکونو یې لیکنه کولای سوای. د ده د خطاطۍ یوه ښه نمونه د عیدګاه د دروازې د ښکلې لیکنه ده. د وزیر محمد ګل خان مومند پښتو قاموس او د لښکرګاه د مسجد جامع او څېنو نورو جامع ګانو کلمې او آیاتونه هم ده لیکلي دي. په خطاطۍ کې د مرحوم صوفي عبدالحمید خان د سبک پیرو او شاګرد و (مرحوم صوفي عبدالحمید خان هغه څوک دی چې د خرقې مبارکې د زینې یې خطاطي کړې او یسین شریف یې هلته لیکلی دی)

ښاغلي عبدالعزیز خان چې په مشاق صاحب سره مسمی و، علاوه پر خطاطۍ په رسامۍ و مینیاتورۍ کې هم لاس درلود.

## مرحوم قاري عبدالعزیز

کله چې مرحوم اعلیحضرت امان الله خان کندهار ته تشریف راوړ د هغه وخت د معارفو د مدیر مرحوم مولوي صالح محمد خان څخه یې وغوښتل چې ملا امام ورته معرفي کړي خو د اعلیحضرت امامت په غاړه واخلي نو صالح محمد خان مرحوم قاري صاحب هغه ته ورمعرفي کړ.

د قاري صاحب د ژوند زیاته موده په ښوونه او تدریس تېره شوې ده او د ژوند تر وروستي لحظې پورې په دغه سپېڅلي وظیفه لګیا و.

لومړی د شالمار یا اوسني مشرقي لیسه کښې معلم و، کله چې د فاضل کندهاري ښوونځی پرانستل سوه نو قاري صاحب د هغې ښوونځي د لومړي سرښوونکي په توګه وټاکل سو.

ښاغلي مشاق صاحب علاوه پر ښوونې او تدریس

(پاته په ۲۵ مخ کې)



د قاري صاحب د خط یوه بله نمونه

زموږ مشایخ:                    دعبدالقدیر «نجیب» انتخاب:

# صوفی صاحب علیه الرحمه

دصوفی صاحب علیه الرحمه اصلی نوم محمد رسول او په کام مندینزی سا گزی ؤ. د نقشبندی طریقې ډیر سالك او بزرگوار دمستانه تیر شوی دی. زیارت ئې د کندهار دښار د وشمال غربی خنډی ته دصوفی په دښت کې واقع او دخاصو عام مرجع دی. پر شنخته باندې ئې داسې لیکل شوی دی مرقد منور برهان المحققین و قطب المرشدین اکثر مشایخ واعظم اولیا صوفی محمد رسول قوم اسحق زی مندینزایی سرحلقه کرامات وریاضات اولیا بود دراسرار و حقایق قدم بر قدم شیخ بهاؤ الدین نقشبندی داشت رحلت مقتدا در صبح سیزدهم شهر ذالحجه ۱۳۸۷ بود درحسن خلق وادب عدیل نداشت.

## باباصاحب علیه الرحمه:

باباصاحب یو ډیر سالك او پرهیز گاره ولی تیر شوی دی د کندهار دقول خلګ په مریدی ارادت ورته لری او وزیارت ته ئې ورځی تحفة الکرام لیکی چې اصلی نوم ئې سید حسن ابدال دی او دصحیح النسبو ساداتو څخه ؤ ډیر عمر ئې په مکه معظمه او مدینه منوره کښې تیر کړی او شاقه ریاضتونه ئې کښلی دی له شاهرخ میرزا سره چې له هنده څخه وهرات ته ستنیدی دتنګه په لار کښې د کندهار دارغنداب سمسوری سیمی خوندور کړ او بدغه ځای کښې چې اوس ئې لنګر پولی دمریدانو حلقه جوړه کړه. طریقه ئې چستیه او په ولایت کښې ئې دابدال مقام درلود.

## میرغلام علیشاه «د گنی»

دتوپخانې ددروازې دباندې دسلو گامو په فاصله سره دمیرغلام علیشاه د گنی زیارت پروت دی د گلزار کندهارمؤلف جناب مولوی لیکی چې ددې ستانه ولی دنسب سلسله وسید جلال الدین بخاری ته دسیږی چې هغه بیا دسید محمد نقوی له اولادی څخه ؤ په ۱۱۶۰ کال کې نوموړی کندهار ته راغلی او په دغه اوسنی ځای کښې میشت شوی دی اعلیحضرت احمد شاه بابا او ددوه خاندان نوموړی میر ته ډیره عقیده درلوده او خپل مرشد ئې گاڼه.

د ۳۴ مخ پاته

## دکندهار نامتو خطاط

دطلوع افغان دجریدې د کاتبی لویس په چارو کې ئې هم برخه اخستې ددغی جریدې دچلونکی مرحوم عبدالعزیز خان سره ئې زیاته مرسته کول. ددې تولو مشغولیتو سره سره د. په کورکی هم ډیر شاگردان درلودل.

دهندوپاکستان ترجوړیدو دمخه، قاری صاحب : کراچی په افغانی قونسلگری کی په کار بوخت ؤ او هلته دیوی مدرسی له خوا ده ته بلنه ورکړه شوه چې یو قلمی قرآن شریف ورته ولیکی. ده دغه کار سرته ورساوه او په هغه باندې ئې یوه جایزه هم واخیستل. لنډه دا چې داهنری ډیر مهیمن کال دحمل په شپږمه نیټه د ۸۳ کالو په عمر خاموشه سو او ددوستانو په مجلس کی ئې کندوچوړه کړ.

«پای»

د ۲۰ مخ پاته

## ناکامي په ژوند کښې...

عین مرگ دی او هم هرڅونه چې یوه خوشحالی شانداره وی هغو مره هغه لاری هم سختې دی چې دهغی دحصول دپاره طی کیږی ، د ژوندانه پربا لیتوب په حقیقت کی داډول کسان غواړی چې د پربالیتوب وړ وی.

بو رتنې خبری یو ښکاره حقیقت دی نو هر ځوان ته لازمه ده چې د یو رتنیو خبرو څخه یوه نتیجه لاس ته راوړی او دغه نتیجه دیوه کلك عزم او سختې ارادی په واسطه لاس ته راځی ، څو بدی صورت سختیو او مشکلاتو په مقابل کی دهغو څخه کاروا خلی.

«پای»

د ۲۱ مخ پاته

## دناهله کسانو دمجلس...

په یوه ساعت مجلس دنا کسانو افلاطون ترخولی و باسو ماخولیا

شپون خو څکه سنګدله و بالهسی چې روزگار کاندی له کاڼو د بیدیا

تیز تاثیر لری تر څو صحبت دبدو داخبره از موده ده په بیا بیا

له صحبته یی کم ښت د حرص خیژی وی په اصل کی دښمن اهل دنیا

در ولعل ورکول په وړیا نه سی بیلهما چې ورته پښه وایم دښتیا

چې یی ورکه کړه لویی په خاك سادی اوس حمید سو په اصلی وطن بسیا

«پای»

«د ۱٦ مخ پاته»

# ګاڼۍ زموږ

د ښکر وهلو...

او ګاڼۍ چې لاندې په کار لويدلې زموږ ښځه منو په پښه کښاوو کې چې بر آسانو او اوچانو بڼۍ ابښې وي تګه دانګه کاوه او پښه تیره بیا ښځې په کښاوو کې سپرېدلې او ناو يانې بڼۍ هم په کښاوو کې دزومانو کره او سنتلي حال دا چې اوس دا کار په مو ټرونو کې

کيږي خوددې کار دبا ره ئې د دولي «جوبان» ښځه هم کار اخيست او اوس هم ځينې رواج لري او خلک ئې پرځیلو اوږو وړي.

که څه هم زموږ کسانه ځوانان اوس هم په ګاڼۍ کښې

ښکر ونه وهي او سپرلې او هوا خوري کوي په اخترونو، جشنو او ميلو کې خلک زياتره د ګاڼو څخه کار اخلي. «پاڼی»

# د لويانو خبري

هيله دانسان تر ټولو ښه منيو ښه دي.

«سکندر»

دملت دمړوچ توب لوی سبب ددوي اجتماعي اخلاق دي.

«ګوستاو لوبون»

ادب دانساني ژوند تفسير دي.

«اړنولډ»

سپما کو ونکی شه مګر د سخاوت خوبونه پريږده.

«جاوبرټ»

ژوند يوه کار مرګه دی.

«دو برسټون»

«د ۱۵ مخ پاته»

# د کندهار مجله...

کندهار د نورو ليکوالو په مرسته په ډېره پوري مطالب خپاره کړي.

موږ په نوي کال کښي مجله د کندهار محلي او د سيمي محيطي مسايلو ته اختصاص ورکړي او غواړو خپل ارخونې او او سني ادبي، سياسي، تاريخي او

سرښندونکي شخصيتونه معرفي او دهغو د ژوندانه حالات خپاره کړو څو چې زموږ او سني نسل ته د خپلو نامتو

شخصيتونو وطنپرستي، ملي خدمت او فداکاري سرمشق وګرځي او دهيواد او سيمي په لوړولو کي ورته لوي رهنما شي.

موږ ورو سته تردي په مجله کښي د خپلي سيمي پر تاريخي پيښو رڼا اچوو خپل رواجونه، خويونه او د ژوندانه نور مراسم څيړو او خپله معماري، نقاشي

مينا توري او داسي نور هنرونه معرفي کول غواړو محلي او نورو اړوند تاژونه د عکسونو سره د امکان تر حده پوري

تر تيبوو او د مير منو، ځوانانو، د پوهني د شاګردانو اختصاص باټو ته هم ځاي ورکړو او هيله مو داده چې د کندهار مجله د مضامينو، صحافت او طباعت له پلوه هرچا ته په زړه پوري وګرځي.

موږ په دغه لار کي نه يوازي د سيمي د ليکوالو او پوهانو څخه هيله لرو چه په دغه ملي او ستر معنوي خدمت کښي د

ښځوا نه زياته قلمي مرسته وکړي بلکه دهغو کندهاري ليکوالو او پوهانو څخه چي په مرکز او نورو

ولايانو کي دمي او ياملي وظيف سرته رسوي، غواړو چې په دغ ملي او کلتوري خدمت کښ موږ يوازي بري نه دی او خپل وس زموږ څخه ونه سپموي.

موږ لکه څرنګه چې د اطلاعا او کلتور دوزارت او حکومت آرزو ده خپلي دا سپارل شوي مطبوعاتي او کلتوري وظيفې بوره بې طرفي، اما نتدارۍ ا

جديت پر مخ بيول غواړو او دغه لار کښي هيڅ ستړ يا احساسوو د صادقانه خدمت لاري او خپل تاريخي مسئوليت کندهار بانو او هيوادوالو پ مقابل کي ليري کوو او باور لرو چې پوهان او واقعي منو رين زموږ سره په دغه لار کي ملګري دي.

«غلام محيي الدين ايوبي»

## ماري استور خپله جايزه تر لاسه کړه

د سينما ئي نړۍ نامتو لوبغاړ ماري استور خپله جايزه تر لاسه کړ ماري استور د ۱۹٤۸ کال کي د «لو دروغ» په نامه په يوه فلم کي رول

لوبولی او دا و سکار جايزه ئي ګټلې وه خو دهغه وخت دا هيئ دهينو هنري مسايلو په نسبت ددې

جايزه نه وه ور کړه شوي څو ورځ ترمخه ئې دهاليوډ دهنري مقاماتو څخه خپله جايزه تر لاسه کړه.

د ۲ مخ پاته

# د برین دیګ

ودبن واخند ته ورکول کیږي هغه مدرس چې په هره هفته کښې پنځه ورځې د شرعي علومو درس ورکوي په کال کې .. منو غنمو څلوېښت خرواره او دېرشو څلورسو واتیا نقد و دینارو مستحق دی.

د لوست د دولسو اعلی نفر یو ته دی فی نفر دري سوه شپېته دیناره نقد او لس خرواره غنم .

او اوسطو نفرو ته دوه سوه څلوېښت دیناره نقد او اوه خرواره غنم .

او ادنی څلورو نفرو ته دي هر نفر ته یوسل اتیا دیناره نقد او پنځه خرواره غنم وصالح عامل امام ته دي چې مدرسې والاو ته پنځه وخته لمونځ ورکوي د کاله دري سوه شپېته دیناره نقد او لس خرواره غنم .

د پنځه وخته لمونځو وعالم مؤذن ته یوسلو اتیا دیناره نقد او پنځه خرواره غنم .

که یو مدرس یو معید طالب او یو خادم په مدرسه کښې همه وخته حاضر وي نو مقرره دي په یو دتنې ډول سره وي وحفاظ او امام ته د مقبري دي د کاله اوه سوه شل دیناره نقد او اته خرواره غنم د نورو پنځو نفرو ته دي په مجموعي ډول څلور سوه اتیا دیناره نقد او څلور خرواره غنم ومؤذن ته دي یوسلو شل دیناره نقد او دري خرواره غنم ورکول کیږي .

## پنځمه منطقه

د مدرسې دیوه نفر کتابدار ته دي چې د مدرسې له شاګردانو څخه ټاکل شوی دی د نورو طالبانو په شیر سره مقرره ورکول کیږي هر طالب مکلف دی چې په لیلیه کښې وي که احیاناً څوک په لیلیه کښې نه وي د مدرسې مدرس دي ذ ییقو تي د خرڅ په اندازه سره مقرره ورکمه کړي د مدرسې د سقاوي و او به کښو نکي ته دي د مدرسې د خادم په اندازه سره مقرره ورکول کیږي څلو د [illegible]

وظیفې دي په دغو مواجبو سره وي دیوه نفر متدین شیخ ته دي هر کال دري سوه شپېته دیناره نقد لس خرواره غله وطباخ ته دي دوه سوه څلوېښت دیناره نقد و خادمانو ته دي دري سوه دیناره نقد .

څلو دي دوابت په شپږو میاشتو کښې په بسرلي کې هره ورځ یو خروار غنم څلور منه غوړي دوه منه مالګه دوه منه پیاز دوه منه مولی لس منه شلغم دوه منه نخود په دوبي کې هره ورځ یو خروار ډوډۍ د کفایت په اندازه سره لرګي دوې میاشتې په دري میاشتې کې دي پنځه منه دوشاب یو من غوړي او یو من اوړه د حلوا دپاره لس منه ډوډۍ د مستحقانو دپاره .

کرد این چشمه پر ز شربت و قند
حضرت شهریار ظفر مآب
ساخت تاریخ این بدین تعریب
کاتب العبد چای شربت آب

د (۱۲ مخ پاته)

## ستاسي زړه ستاسي روغتیا ده

موږ باید زیات کوښښ وکړو چې د زړه د ناروغیو په مقابل کې چې وژونکي اوتبار یکه آینده له ځانه سره لري ځانونه او خپلې کورنۍ د صحي اصولو په پیروۍ وقایه او په خپل خوا ږه ژوند کې

د غه ستر شعار چې «ستاسي زړه ستاسي روغتیا ده» ځانونه ورټاکو.

(د ۵ مخ پاته)

# د افغانستان او

## شوروي اتحاد...

د هند او افغانستان د ښو او دوستانه مناسباتو د پراختیا په لار کې یو مهم د افغانستان او هند ترمینځ تجارتي مسأله ده .

افغانستان هند ته میوې او خپل نور پیداوار صادروي او په عوض کې له هغه هیواد څخه چای او نور متاع هیواد ته راوړي .

## په منځنۍ ختیځ کې

د مصر د عربي جمهوریت رئیس انور السادات د یوې بیانیې په ترځ کښې چې د عربي مبارزینو په اسامبله کښې ئې ایراد کړه، خپل دیپلوماتیکي روابط ئې د اردن سره وشلول .

دا اقدام د ملک حسین د هغه پلان په خلاف چې د اردن دیوه فدرال حکومت په عنوان چې د اردن دواړه سیمې په هغه کې شاملې دي، شوی دی .

که څه هم د اردن د پاچا ملک حسین دا پلان د هغه هیواد د پارلمان د خوا تائید او تصویب شوی دي خو د عربي هیوادو د خوا نه دی منل شوی.

د قاهرې مقامات ادعا کوي چې د ملک حسین دا پلان یوازې د اسرائیلو په ګټه دی او د عربي سرتیرو تول سیاسي حقوق ئې له منځه وړي دي .

غلام فاروق انورزي:

# د نيش علاقه داري

### موقعيت:

د نيش علاقه داري چې د کندهار د خاکريز د ولسوالۍ مربوطه ده، د کندهار د ښار له شمال لوېديځ په ۹۰ کيلو متري کې پرته ده او د ختيځ لوري ته يې د شاه ولي کوټ سيمه، شمال ته يې د روزگان ولايت، لوېديځ ته يې د دهراود ولسوالۍ او د جنوب خوا ته يې خاکريز دی.

په داسې حال کې چې نيش د کندهار څخه دومره زيات فاصله لري د ترين کوټ سره په پوله شريک او لس کيلو متره څيڼي ليرې دی.

### کلي او کاريزونه:

د نيش منځنۍ برخه د «ټب نيش» په نامه يادېږي او څه په څه پوښت خرابه او آباد کاريزونه لري چې کلي او کورونه يې آباد دي.

د نيش برشا خوا شکلي غرونه را گرځېدلي او لوېديځ پلو ته د غره يوه برخه يې ټبره شکلي ده او د سليمان تخت په نامه يادېږي او د هغه ليدل د گرځېدونکو دپاره د دلچسپۍ وړ دي.

کاريزونه يې خوردنگ، باريکه، بارگنډي، غوراني متان، چار گنبد، د فيضو کاريزگي، کوچنی کاريز، ترکمن، خوردنۍ، چوپانۍ، د سلام کاريزگي، د بېتاو کاريز، نو کاريز، سرپوشان، د عبدالهادي کاريز، ورجانی کاريز، دينارخېلو کاريز، سرداغ کاريز، سيد کاريز، شين لېږه کاريز، د بڅې چوڼې کاريز، نری کاريز، شهرک کاريز، حاجي علم، شين کاريز، د سيوري کاريز، د سلان کاريز، تاتر کاريز، باغ آغا، ښاويز، بوره گانه، عبدالحکيم کاريز، قاسم، لوی غني گی، د ښوراو کاريز، د کندي کاريز، داوي کاريز، دچينو کاريز، دده نور کاريز دي او کلي يې هم په دغو نومو يادېږي.

### اوسېدونکي:

په نيش کې ټول پښتانه اوسي او زياتره کسان يې په قوم پوپلزي دي، بارکزي، وزير، عليزي هوتک او کاکړ هم پکښې مېشته دي.

د دغې سيمې خلک د نورو پښتنو په څېر زحمت کښه، مېلمه پال او نيکي او په خپلو پخوانيو عنعنانو ټينگ ولاړ دي او کسب يې کرنه، باغداري او د څارويو روزنه ده او څيني مالداران هم پکښې اوسي.

### داوبو وار:

که کال آبادۍ نو د ژمي په موسم کې داوره او په پسرلي باران نه پکښې کېږي او د د غو گڼو د و اورېدو له امله شيلې او منډوې راځي د ويالو او کاريزو اوبه زياتوي، کروندگر او باغ لرونکي د خپلې خوښې سره سم څنگه چې يې زړه غواړي خپلې ځمکې او باغونه اوبه کوي،

خو کله کله چې د کال د وچوالي له امله د اوبو تنگسه شي نو خلک د اوبو د لږوالي په نسبت په زياتو مشکلاتو اخته کېږي کله هم

اوبه په وار لگوي خو څيني وخت د اوبو پرسر د کروندگر او بزگرانو تر منځ شخړې هم پېښېږي د اوبو وېش د ورځې له خوا د لمر

د وړانگې په حساب چې دوی په کليوالي اصطلاح ورته «سيوری» وايي کوي د شپې له خوا بيا اوبه د ستورو په حساب معلوموي شپه

په څو برخو وېشي او د هغه له مخې بيا يو او بل اوبه په وار سره لگوي

### پراخ دښتونه:

د نيش سيمه د کرنې وړ پراخ دښتونه او د پسونو د روزنې د پاره ښې او ښه شوگانې لري که کال آباد او باران ښه وي نو کروندگر او بزگران ښه حاصلات اخيستلای شي څنگه چې د دوی زياتره ځمکې للمي کاره دي که د پسرلي موسم آباد شي نو د اوبو څخه په لوړو ځمکو لکه غونډۍ، د غرو په لمنو

او دشیلو په اړه خونوکی للمی
غنم کری ، که کال وچوی نو
ددغی سیمی خلکځ داو بود
نشتوالی به مشکل اخته وی ، او

زیاتره خلکځ ئی نورو سیمو او
اوی ځایونو ته کډی کوی او
محکی ئی شاړی پاتیږی ، که

چیری په دغه علاقه کی چی پراخ
دښتونه او دکرنی وړ مځکی لری
ژور څاگان وکیندل شی او
واقر پمپونه په کار واچول شی نه

یوازی به داو بود نشتوالی تشویش
او دغلی د کموالی پریشانی
لیری شی بلکه ددغه سیمی دکرنی

دپراختیا او زراعتی تولیداتو
پاوړی کیدو له کبله به ددغی سیمی
دخلکو ژوند او اقتصاد ښه شی
او هم به دا کار دهیواد په اقتصاد
باندی گټوره اغیزه وکړی .

**میوی او دانی:**

دنیش په باغونو کی انگور ،
بادام ، شکرپاره ، توت ، زردآلو
انځر او نوری میوی لاس ته راځی
او ځینی غرونه ئی ونی لری او هغه

زیاتره تر خه بادام دی ، دغره
انگور ، انځر ، شکم پاره او ځیره
هم پکښی پیدا کیږی .

په محکه کی ئی غنم ، اوربشی ،
جواری نخود ، ماش ، پنبه ، تمباکو
او پیاز هم کرل کیږی او که کال
آباد او دکار یزو او بوزیاتی وی

دهندوانو او خټکیو پالیزونه
هم پکښی کیږی .

**مالداری:**

په دغه علاقه کی ځانی او
کوچی مالداران هم شته چی دپسونو
پهروزنه اخته دی ، ددی سیمی اهلی
حیوانات غوا ، غوئی ، آس ، خر او اوښ
دی په غرونه کی ئی گیدړه ، چیغال ،

شکوڼ ، لیوه ، او کوزشته ، ددره نور
په غرونو کی پړانگان هم ژوند کوی
غرونه ئی پسونه ، دره ئی زرکی او

دښت ئی سویان او هوسی لری .

**مرغان:**

مهم مرغان ئی چرگان ، باښه ،
شاهین ، گیږکه ، ښارو ، زرکی ، سیسی ،
خرگه ، سپیرکی ، که ، دښتی سپیری
چوغکی ، بلبل او شنی کوتری دی .

**دودونه:**

نجلی غوښتل : په دغه سیمه کی چی څوک
خپل زوی ته یاوروو ته نجلی غواړی
نو دځوان مور و پلار اکا یامشرورور

لومړی په دی لټه کی وی چی دخپل
زوی یاد ورور لپاره ښکلی او کارنده
او داسی پیغله وغواړی چی ددوی
دکورنی کارونو له پاره مرستیا له شی ،

نو دځوان دمور او پلار له خوا د نجلی
کورته مرکه ورلیږل کیږی او په دغه
سیمه کی زیاتره وختونه د مرکی کسان
ناریښه وی ډیر لږ لیدل کیږی چی
ښځی دی په مرکه ولاړی شی او یا دی
دنجلی په ورکولو کښی دنجلی یادی

دمور سره سلا او مشوره وشی ، نو
هر کله چی مرکه وړشی که د نجلی
ورکړه د پلار ، اکا یا مشرورور دهغی په
کی خوښه راغله بیانو دوی ددغه کار

سره خپله موافقه څرگندوی په دی
شرط چی دولور د پیسو اندازه سره
وټاکی په دی وخت کی دواړی خواوی
دنږدی سیمی او کلیو ځینی
دوستان دغه محفل ته رابولی
او ددسمال د ورکولو مراسم

برهای کیږی چی په کلیوالی
سیموکی «دتغی» په نامه یادیږی
په دغه سیمه کی د پیغلی او نجلی دولور
لوړه اندازه شپیته زره افغانی

او ټیټه اندازه ئی دیرش زره
افغانی دی معمول داسی دی
دتغی دورکولو په ورځ باید

دولوردو همه برخه پیسی د نجلی
پلار ، اکا یامشرورورته په نقدی
یاجنسی ډول سرهورکړه شی .

**محلی لوبی:**

په دغه سیمه کی د آسانو ساتنه
رواج لری هغه کسان چی شتمن
او محکه و لری نو هغه بیا آس ساتی

او دکال په دوو وختونو کی دوی
آسان ځغلوی ، داختر و او جشن
دمیلو په ورځو کی د آسانو
ځغلولو لوبی کوی داډول چی په

یوه پراخ دښت کی چی دمیلی
دځای دځنگ سره ټاکل شوی وی
ددوو آسانو سپاره په لوبه پیل

کوی او تر هغه ټاکلی فاصلی پوری
چی نښانی شوی وی په ډیره چابکی
سره ځان رسوی او بیر ته
راغبرگیږی نو په دغه وخت کی

چی دهر یو آس نومړی در او دسیبزی
هغه نمره گټی ، لو په تر آخره پوری
په دغه ترتیب دوام کوی تر څو چی

دټولو آسانو دپلی نه دوه آسان
دلوبی وړ ونگی وبلل شی وروسته

بیا د غه دوه آسمان په مسابقو کې
سره لوبې یې په د غو دو آسمانو کې
چې هر یوه لو به و گټله بیا نو هغه

ته درنګه وډ یو او پنبه و څخه جوړه
شوی امیلونه چې کلیوالی ورته
«جلونه» وائي ور په غاړه کیږی
په توپك د نښانوو یشتل هم پدغه

سیمه کی دواج لری په تیره بیا
د اختر، جشن او و دو نود
خوشحالیو په ورځو کې د ځوانانو

له خوا په توپکو نښانو نه و یشتل
کیږی، دغیږی ایستل هم د دغه
سیمې د محلی لوبو څخه شمیرل
کیږی، د دغې سیمې ځوانان

د پسرلی په موسم او هم د اختر و
او جشن د خوشحالیو په ورځو کی
دغیږی ایستلو د لوبو د پاره

میدانونه جوړوی، په دې ډول چې
دغیږی ایستلو لوبی کوونکی
پردوو ډلو ویشل کیږی او د هری
ډلی نه دوه تنه د دغه لوبې د تمیز

کوونکو په صفت د دوی ځارنه
نه کوی بیا د یوی خوا او بلی خوا
دوه ځلمیان په غیږ سره ورځی.

د غیږی ایستلو لو به د دری رونه
لری په دری وارو کی چې هر یوه
د دوی څخه نمری زیاتی یوسی
هغه د لو بی وډو نکی گڼل

کیږی.

د دغې سیمې ځوانان او پیغلې
د ملی اتڼ زیات شوقیان دی

د خوښیو او میلو په ورځو کی
د ډول او سورنا په غږ لو سره
د بهشتي لنډیو او د اتڼ د نارو په
و یلو سره یو های ځوانان ملی

اتڼونه کوی، د دغه سیمی ځوانان د
ملی موسیقی سره زیاته علاقه او مینه
لری او د دغه سیمی د ساز او آواز
آلی یو ازی شپیلی او دو تاره ده چه

شپیلی د دغه غرنی سیمی د شپو نکی
خوږه ملګری ده او دو تاره د
ځلمیانو د ساتیری او د مسازی وسیله
ده.

## د نیش تاریخی موقعیت:

د تاریخی اسنادو په حوا له د
آریا ئیانو د لسو قبیلو څخه یوه قبیله
د نیسها په نامه یاد یږی او څکه چه هغه

قبیله د لته د راغلی او سکونت ئی غوره
کړی دی د دغی سیمی نوم هم د نیسا،
نیس او نیش کلمو او وسنی ترکیب ته
د ااوښتی دی.

په دغه ارغونی سیمه کی چه کله کله
خلکو د خپلو کورونو جوړو لو د پاره
ځړی و د انی او د خاورو غونډی ټی ولی

دی نو ئی د خاورو، ځړو لوښی او د مسو
سکی او د اسی نورشیان پیدا کړی ی
دی.

لکه څرنګه چه په ۱۳۴۹ کال کی

هر کله چه د نیش د د رڅنورد کلی یوه
او سیدو نکی ښاغلی حاجی گل ابو بی
د خپل کورد یو ال جو ړاوه نو ئی

د غونډۍ کیندلو په وخت کی یو ځوړه
خاوړ ین لوښی و موند چه دری سوه دانی
ځړی مسی سکی پکښی وی او هغه ئی
د کیندهار موزیم ته و سپارلی.

هر کله چه د دغو سکو نمونه مرکزته
و لیږل شوه نو هغه ئی د هندو شاهی
د عصر سکی و بللی او ز موږ ارغون
پیژندونکو د هغه تاریخ زر کاله ګڼلی

دی او لیکلی ئی وه چه د غه سکی
د غزنو یانو او غوریانو په عصر کی
هم چلیدلی.

د نیش په دغه سیمه کی ځړی
کنډوالی، ځاله، برجونه او د اسی
نور هم شته چه اوس د خاورو په تپو
بدل شوی دی او که کیندنی پکښی

وسی بنا ئی نور تاریخی آثار هم
هم لاس ته ځنی راسی.

## د روحانی شخصیتونو مقبری:

د نیش د سیمې په منځ کی د دغه سیمی
د یوه لوی روحانی شخصیت مزار
پر یوه غونډۍ باندی د لیری نه
د تیر یدو نکو نظر و راړوی چه هغه

میر باباتو میږی او په ۱۱۷۲ه
قمری کال کښی د نیش د علاقی
د کټه خنجکټ په کلی کی

زیږیدلی او د عمر په ۹۵ کال کښی
وفات شوی دی، د دغه میر نی مزار
ته د سیمی د خلکو نه پر ته د ډیرو
لیرو علاقو او سیمو څخه چه اوس

هم اخلاص او عقیدت ور ته لری
زیارت زیارت کوونکی راځی
د نو میږی روحانی شخصیت په

باره کی د ۱۳۵۰ کال د کندهار
دمیا شتنی مجلی په ۱۳۰ گڼه کی
مفصل توضیحات ورکړ اندی شوی دی
د دغی سیمی یو بل روحانی شخصیت

مرحوم شیخ ملاشاه پسند اخونددی
چه دی په صرف، و نحوه، منطق
احادیثو تفا، سیر و او فقه شریف

کی لوی عالم او ډیر شاګردان
ئی درلودل او ده د تصوف سره
خاصه مینه او علاقه درلوده او
(پاته په ۳۲ مخ کی)

# دکندهار دکلاسیکی ...



## دمیرویس نیکه گنبده چی معمار باشی صاحب جوړه کړې ده

و هیچا نه دی غوښتي چی ددغه مرحوم نامه ته هلته ځا ی ورکړ ی شی ؟
ڼه کرښی چی پر دغه ځ بره لیکل شو یدی ډ ول یو اځ خیز دی . نو دلته
ا ید پو ښتنه و شی چی ولی دخلیفه نعیم جان نوم هلته نه دی یادشو ی ؟
و ددغی لوحی لیکو نکی و لی و نه غوښتل چی خلیفه صاحب په خلکو
. پیژندل سی ؟ او دا مېنی پر یوه حقیقت باندی ده که چیری ددغه هنرمند
کار او زحمت دښاغلی محمدافضل شیر دل او فنی مهندس ښاغلی نصرالله

(سر پرستی او پاملرنی) سره په ترازو کی واچول سی نو ښځپله به
خلکو ته څر گنده سی چی آ یا نعیم جان ددوی په اندا زه هم زیار
و زحمت نه و ا یستلی ؟ دا و اقعیت تر ډ ولو ښځپله ښاغلی نصرالله ته

څرگنده ده او دی دخلیفه نعیم جان ا د
لمی پوشاگردانو څخه دی .

دا ځ بره دا سی نه ده چی و لیکل شو ل
او بس ، البته دا به د ا تلونکو نسلو ته
دخرقی شریفی په تاریخ کی یو سند
پاته وی . له دی ورسته که بل څوك هم

وغواړ ی دخرقی شریفی په برخه کښی
څه و لیکی هغوی خو به یا په خبر نه وی
چی دلته حقیقت څنگه دی او دا کار دچا
دلاس محصول دی ، یاخو به پر واقعیت

سترگی پټوی او دهغی لوحی پیروی
به کوی .

څه موده دمخه ښاغلی عبدالعلی
د کندهار دپوهنی لوی مدیردخرقی
شریفی تاریخچه لیکلی ده . چی هغه هم
پدی برخه کښی دا سی لیکلی دی :

(داودا نی د کندهاردوالی محمدصدیق
په پاملرنه دمحمد افضل شیردل په
سرپرستی ځ بزا بن میناتودی او رنگ
آمیزی ئی دنصرالله خان فنی مدیرتر

کتنی لاندی وسول) هغه هم حقیقت
پایمال کړ ی دی او دا چی ددی حقیقی
معمار څوك و ، سترگی ئی پر پټی کړ یدی .
ددی دباره چی دگرانو لوستونکو
وخت مو نه وی نیولی و اصلی مطلب ته
راځو .

په څو دمخه نیو کر ښو کی موږ دمعمار
باشی صاحب دکار څو نمونی تاسو ته
یادی کړ ې او س به دهغه رسمی وظیفی
او مشغو لیتو نه دهغو د امتیازو سره چی

په ژوند کی دده په برخه شو یدی و لیکو .
نعیم جان په ۱۳۱٤ کال کی د کندهار
د والی سر دار محمدداو خان په امر
دښاروالی معمار باشی سواو تر ۱۳۲٥
کال یوړ ی ئی کار و کړ . بدی کال کښی
د څه ناروغی له کبله ئی و نه کړ ای شو ای

چې نور ورسره کار ته ادامه ورکړي.

په ۱۳۲۹ کې تر ۱۳۳۱ پورې د کندهار د ولایت د مرستون د ریاست افتخاري فني مشاور او دغه شغه ور وسته تر ۴۲ کال پورې د مرستون د جادې د تعمیراتو معمار باشي ؤ او په دې کار کې ئې د لاس په تهاکو برخه واخسته.

د سرې جامع تر بشپړیدو وروسته خلیفه صاحب د محمد علم خان قرته مشر له خوا چې د ولایت وکیل ؤ د ښار د آمر ینو په رضائیت د نغدو پیسو د لومړۍ درجې جایزې په اخستلو بریالی شویدی علاوه پر دې د مرحوم عبدالغني والي له خوا په خوښحاله تقدیرشوی او جایزې ئې اخستې دي.

په تیره بیا د احمدشاه بابا د مقبرې د کار تر بشپړیدو وروسته ئې زیاته درناوی وشوه..

د اهم بایدوو ایو چې معمار باشي صاحب په هغه کال چې د ښاروالي معمار ؤ د کندهار د مرکز زیاتره کورونه او سرایونه ئې کور په کور او حونه په خونه لیدلي او بیه کړي دي او په دې غرض ؤ چې د ښاروالي صفائي او نور دولتي محصولات د کورونو څخه واخیستل شي. زه د دې د پاره چې د احقایقو څخه ښه ل شوی وی د هغه د زوی سره په تماس کښې شوم.

څنګه چې د مخه مو وویل دا کورنۍ ؤ له د هنر او معمارۍ په فن کې دوزل سویده او تر اوسه پورې چې ئې هر څه غږی تیرشوی دی د وخت پاخه معماران وو نو ښابی دا سلسله نوره هم ونه شلیږی لکه چې اوس موږ وینو د ده زوی محمد حسن (نعیمی) یوه تکړه او پوخ مهندس دی. که څه هم دی اوس د هایدرولوجي په څانګه کښې مشغول دی خو په تعمیراتي چارو کښې پوره لاس لري. د وخت او د خلکو د غوښتنو سره سم ئې په نوي ډیزاین او عصري ډول وداني نقشه کړي یدي.

لیه دا چې خلیفه نعیم جان د ډیري قوي حافظې څښتن ؤ تر دې اندازې چې د سختي ناروغۍ په وخت کې لا هم که به د کندهار د ښار د کورو په هکله یا د هغو د بیه کولو په باب پوښتنه ځني وشوه، خونه په خونه به ور معلوم وه او بیه به ئې ورته ټاکل.

معمار باشي صاحب که څه هم ډیر شاګردان روزلي دي او زیاتره ئې اوس د لوی چوکیداوقن خاوندان دي خو د ده مینه به په کندهار کې د کلاسیکي معمارۍ کمبله ؤ له کړي او نور داسې څوک به بیا د هغه ځای ونه نیسي.

نعیم جان معمار باشي د کندهار د لرغوني معمارۍ یو تکړه هنرمند ؤ چه پخپلو لاسو ئې د مرګ تر ساعته د دې خاورې په آبادولو کې برخه واخیستل خو دا یو ګل ؤ چه مړاوی سو.

بلی! خلیفه صاحب نور نه دی ژوندی هغه (۸۵) کاله د افتخاره ډک ژوند تیر کړی او د عمر زیاته برخه ئې د وطن په آبادۍ کې وقف کړې وه دی که اوس په تورو خاورو کې پروت دی خو نوم به ئې د خلکو پر ژبو به ژوندی پاته وي.



د عیدګاه دروازې شکل د مرحوم نعیم جان د لاس نښه ده

د ده مینه د کندهار د معمارۍ په لاره کښې یو نه جبران کیدونکي ضایعه ده د ده د ۱۳۵۰ کال د جدي په لومړۍ نیټه د دې جهان څخه سترګې پټې کړي.

د ۳۰ مخ پاته

# د نیش علاقه داری

د ده طریقه قادریه وه، ملاشاه پسند اخوند بر سبیره پر دغه شاعر هم ؤ د ده د پښتو اشعارو کتاب چې د کندهار د یوه عالم ملانور محمد له خوا د لاهور په مطبعه کې چاپ شوی دی ژدا الراحلین نومیږی .

## کانونه:

د نیش په سیمه کې څینې کانونه هم شته چې مهم ئې سرب، مس، او سپینه او پیازی لعل دی .

د دغې سیمې خلک سرب د خاورو څخه په وطنی وسایلو راباسی او د هغه د خرو ځلا په پیسو خپله ګذران کوی



دا عکس هغه سیکی ښئي چې څه وخت پخوا د نیش د درهٔ نور په سیمه کې پیدا شوی دی

## لاری او سړکونه:

څکه چې د نیش علاقه د کندهار او تیرین کوټ ترمنځ پرته ده او څوک چې غواړی د روزګان د ولایت مرکز تیرین کوټ ته ولاړ سی باید لو مړی د نیش څخه تیر او بیا د روزګان مرکز ته ورسیږی .

له دغه کبله په بیلو بیلو دورو کې د کندهار څخه روزګان ته بیل بیل سړکونه جوړ شوی او پخوانی لار ئې د پاچ د کوتل څخه تیریده چې د نیش او خاکریز ترمنځ د لوړو غرو پر سرونو جوړه شوی او د موټر د پاره ډیره خطرناکه لار او کوتل دی، ډیر موټر و په پرچپه شوی او اوس موټر نه شي پر تیریدای .

د کندهار څخه یو بل سړک چې څلویښت کاله د مخه تیرین کوټ ته جوړ شوی چې د قاسم کلی څخه تیریږی دا لار هم د یوې خوا اوږده او د بلې خوا د دغې لارې څخه تیریده مشکلات لری، نو په دې کلونو کې د حکومت له خوا د درهٔ نور پر لار تیرین کوټ ته یو نوی سړک جوړ شو چې نور کارئې خلاص شوی او یوازې د خاکریز د بوم د هوارا او ریګلن دښت نږه کیلو متره لار پاته ده چې جغل پر هوار او پوخ سی .

د غه نوی سړک هم نژدې او تر پخوانی لارې په ده دی ۳۵ کیلو متره لنډ او زیات مشکلات او عوارض نه لری .

## د نیش اوسنی مشکلات:

د نیش لوی مشکل دا دی چې د کندهار څخه سل کیلو متره لیری او د خاکریز د ولسوالی څخه څلویښت کیلو متره فاصله لری خلک ئې د دعوو، جنجالونو او حقوقی معاملاتو اجرا کولو د پاره په ډیر تکلیف خاکریز او یا کندهار ته راځی نو که دغه علاقه داری ولسوالی شی او د تیرین کوټ شاولی کوټ او خاکریز څینې ورځرمه کلی په و تړل شی هم به د دغې سیمې د خلکو مشکلات حل شی او هم به د نیش امنیتی ، عرفانی او صحی چاری پرمخ ولاړی شی .

په کار دی چې په نیش کې د خلکو د روغتیا او سلامتی د پاره یو صحی مرکز منځ ته راشی او معارف ئې انکشاف و مومی .

د درهٔ نور او ګردن ګاو په سیمو کې ئې د امنیتی چارو د ښه تنظیم د پاره د ژاندارم دوې تانې منځ ته راشی او د درهٔ نور په سیمه کې د موټرو نو د زیات تردد له کبله د پترولو یو ټانګ هم په کار ولویږی .

که د کرنی د آمریت له خوا ئې د غرو د بادام ونې چې د خوړ لو نه دی په خوږو بادامو پیوند شی البته ښه نتیجه به ورکړی .

د کانونو په ایستلو کې ئې هم د مربوط مقام پاملرنه غواړو .

محمد نبی احمد وال:

# دا ئم زغ

آ ئم وائی:
ستاسی دوړلو ستو لیت
په تاسی پوری اړه لری.

بلی زه آ ئم د پاك پروردګار
د قدرت کارنامه یم او د خلقت
د قانونه سره سم د نړۍ په هستۍ
کی ځای را کړه شوی

دی او په زرو کلونو د انسانانو
څخه د مځکی په هستۍ کی پټ مخ
په حجاب کـــــی پروت

وم.

لاکن انسانانو د خپل تشبث
له مخی زما د مخه حجاب پورته
کی او زه ئی د عناصرو د کمین

څخه را بهر کړم او د خپل تشبث
له مخی تجزیه کړم او د خپلو
مقصدو د پوره کړلو د پاره ئی په

کار واچولم.
او س د انسانانو د خوښۍ سره
سم په هر ډول چی غواړی فعالیت
کوم.

که د ښار د خرابۍ د پاره
می په کار اچوی ښارو نه
خرابوم او که د هیوادو د خرابۍ

د پاره می په کار اچوی هیوادونه
خرابوم.
که می د انسانانو د وژلو
لپاره استعمالوی انسانان وژنم

که مصنوعی بیړۍ د راپاندی
رهنمائی کوی د اکار هم کوم

که پردریابو کی کښتۍ د راپاندی چلوی
کښتۍ چلوم، که بریښنا را څخه غواړی
بریښنا ورکوم، که تودوخی را څخه
غواړی تودوخی ورکوم.

زه د انسانانو په اختیار کې یم
او د انسانانو د سعادت او نیکمرغۍ له
پاره پاك پروردګار (ج) خلق کړی
یم.

بلی!
که انسانان زما انرژی د بدمرغیو،
تباه کاریو، خرابیو، د انسانانو

دوژلو، د ښارو د خرابولو، او د هیوادو
د منځه وړلو له پاره استعمالوی
زه هیڅ قصور نلرم بلکه دا ټوله
د انسانانو د خپل عقل او فکر نتیجه ده

چی ما د (اهریمن) په څیره ظاهر وی
او ما د ټولو بدمرغیو مصدر
ګرزوی.

هو، زه پوهیږم چی ټوله نړۍ
او نړۍ وال زما څخه په بیره کی دی
او بشریت زما د انرژی څخه په خوف
او هراس کی شپی او ورځی سبا کوی

او ټوله د مرګ انتظار باسی.
بلی!
زه اهریمن نه یم د انسانانو عقل

او فکر د اهریمن په څیره ظاهر
کړی یم.
د ابشکاره ده چی زه مخلوق یم

د انسانانو نیکمرغۍ او بدمرغۍ په
ما پوری اړه نه لری د انسانانو په طینت

او فطرت پوری اړه لری.
په هر طینت او فطرت چی
انسانان وغواړی د خپل مقصد

و ته رسیدای شی.
قادر توانا خدای (ج)
د خپل قدرت په کارنامه کی
انسانانو ته د مځکی واك په

لاس ور کړی دی او اشرف
المخلوقات ئی ستایلی دی او د
عقل او فکر ملکه که ئی د نیکمرغۍ

و خواته سوق کوی اختیار لری
بر عکس او که ئی د بد مرغۍ
و خواته سوق کوی اختیار لری،
د دی دوو لارو نتیجه انسانانو ته

راجع ده.
که د نیکمرغۍ و خواته
حرکت کوی خپلی لانجی او

شخړی د سولی او اصلاح، د
حقیقت او واقعیت له لاری حل
کوی او نړۍ د سولی او سلم په
مرحله کی ساتی آرام ژوند

او خوښه دنیا به د انسانانو
له پاره لبیك وائی.
زه د پاك پروردګار (ج)

مخلوق آ ئم یم او بر عکس که
انسانان د سولی او سلم څخه
تمرد او تجاوز کوی او نړۍ
د بدمرغیو او فلاکتو سره مخامخ

کوی او خپلی شخړی او کشالی

(۳۴ مخ)

سولی او اصلاح له لاری نه حل کوی.

بلی زه اقم یم د خپل خدای قادر بی همتا (ج) دا رادی سره سم به ستاسی له پاره دوزخ و گرزم او په خپلو سختو او تودو لمبو او په زهر ناکه دودانو او گازو او دراڼیوا کثیف په موجو او زور سره به مو تاد و مار او هلاک کړم.

## اخطار!

زه اقم یم او د پاك پروردگار (ج) دقدرت کارنامه یم هم جنت یم هم دوزخ یم.

که د پاك پروردگار د اوامرو څخه طغیان او سرکښی وکی و د اهریمن (شیطان) وخواته ورسی، دوزخ یم زما دزهر ناکه دودانو او لمبو انتظار باسی زه د اهریمن (شیطان) او د اهریمن دطرفدارانو له پاره پاك څښتن (ج) پیدا کړی یم چی اهریمن او د اهریمن طرفداران ژوله وسوځم.

زه اقم یم د پاك پروردگار (ج) دطرفدارانو له پاره جنت یم د سولی صلاح، حق او حقیقت سره ډیره علاقه لرم د هوسا دنیا او نیکمرغه ژوند طرفدار یم د حق او حقیقت طرفدارانو ته په دنیا کی جنت یم او د دوی ژوله خدمتونه چمتو او لبیك وایم.

گرانو انسانانو! خپل دوست اقم و پیژنی زه دپاك پروردگار (ج) مخلوق یم او ستاسی د ژوندانه ژوله چاری په ما پوری اړه لری ستاسی نږدی دوست یم زما څخه مه ویریږی زه اهریمن نه یم نه ستاسی دښمن یم.

خپل ځان ته متوجه سی که ستاسی دعقل او فکر ملکه ستاسی څخه آزار اودر څخه ولاړه سی او خپل ځای اهریمن (شیطان) ته ورپریږدی او ستاسی عقل او فکر د اهریمن ترچپاولاندې راسی، البته زه ستاسی دښمنی ته حاضریم او تاسی دپاك پرورد گار (ج) د اوامرو سره سم سوځم.

پوه سی، زه اقم یم، زه اقم یم که دپاك خالق توانا (ج) لاری ه څخه انحراف وکی طغیان او سرکښی غوره کی، زه اورانیوم یم زه هایدروجن یم او زما دژولو عناصرو اقمونه بی ساری قدرتونه لری او د ژولو عناصرو اقمونه به ستاسی دښمنی ته حاضر شی.

زمـــــــازغ واوری زه اقـــــم یم.

نږی دخپلو ځانو له پاره دوزخ مه گرزوی ه خپل پاك پروردگار په وحدانیت او قدرت سره و پیژنی ه چی ستاسی دعـقـــل او فکر ملـــــکه ستاســـی څخه خوښـــــه او ســـــی، او تاسی د سعـــــادت او نیکمرغـــــی پرلاره رهنمائی کړی.

تاســـی داشکلـــی او پاکـــه ملـــکه چی ستاسی دعقل او فـــکر رهنمائـــی کوی دځانو څخه مه لیری کوی.

اهریمن (شیطان) ته موقع مه ورکوی چی ستاسی زړونه او مغزونه چور کړی او تاسی دبد مرغیو او بدبختیو کندوته ورداړتاو کړی.

دنیاوالو زه مو وپیژندم؟

زه اقم یم، زه آقم یم دپاك پرورد گار (ج) دقدرت دکار نامی غړی یم اوس نو ستاسی اختیار دی که ښه کوی که بد خپله نتیجه به وویني دښوښه نتیجه ده او دبد و بده نتیجه وی، ما خپلی غاړی خلاصی کړی زما څخه مه ویریږی ه دخپلو اعمالو څخه و ویریږی ه.

څه چه کوی ه هغه به وینی ه

زما نوم په بدو مه یادوی چی اقم انسان وژنی او ښارونه خرابوی ستاسی دخرابی علتونه می تاسی ته عرض کړل البته ستاسی دمسؤلیت څخه به خلاص سوی یم.

زه وایم زه اقم یم ا ستاسی دوژلو مسؤلیت به تاسی پوری اړه لری په آخر کی وایم چی سلام دی وی دعقیدې او ایمان پرخاوندانو.

# د منزل باغ په روغتون کی

یو ۱۸۰ کلنه میلمنه چی د ۵۱ کلن کور به له جبری واده شخه ئی ږږه و کړه، په داسی حال کی چی د هغه سړی له خوا وژل کیده د نجلی پلار په دی حساس وخت کی راورسیدی او نجلی ئی له مرګه بچ کړه.

یو پنځوس کلن سړی چی عبدالخالق نومیږی د ترین کوټ د کج خنجک او سیدونکی د نجلی د خپلوانو شخه دی. د نجلی په دی پلمه چی ماندینه یی نارو غه ده د خره په سو رلی د دهراود شخه ترین کوټ ته بوتله. نجلی چی د هغه کور ته ورغله، و یی لیدل چی د هغه ماندینه روغه رمټه ده او خپل کوچنی ته شیدی ور کوی.

نجلی دوی شپی د میلمنی په توګه د یو پنځوس کلن سړین ژری په کور کی تیری کړی، په دریمه شپه د کور به له خوا د هغی شخه دواده غوښتنه وسوه او هغی له دی غوښتنی شخه ږږه و کړه. په دی وخت کی په داسی حال کی چی کور به په نجلی باندی په چاقو حمله و کړه د هغی پلار د عبدالخالق د ماندینی د پوښتنی، ګلو یهونی او د خپلی لور د لیدو د پاره هلته راغی او د دی پیښی سره مخامخ سو سمدستی ئی نجلی د مرګه بچ کړه او د روغتون لاری په خوله ور کړه.

اوس نجلی د موسی جان لور د روزګان د ولایت د دهراود او سیدونکی د کندهار د منزل باغ په روغتون کی تر علاج او درمل لاندی و نیول سوه.

عبدالخالق وایی چی نجلی پخپله ځان حلالاوه خو معالجو ډاکترانو دده دا ادعا رد کړی یده.

## په ارغنداو کی

د یوی کوچنی نجلی سره د پیښی انځیوالی ددی سبب سوه چی هغه نجلی د مار له چیچلو شخه بچ کړی.

— ښاغلی حضرت محمد د کابل د شور بازار او سیدونکی د خپلی میرمنی او کوچنی لو سره کندهار ته د سیاحت د پاره راغلی او د ارغنداو په سیمه کی په یوه کور کی هستیدی.

یو نیم کلنه نجلی چی ناهید نومیږی، په خونه کی په زانګو کی بیده وه او مور و پلار یی پر بام د شکوفی سیل کاوه چی د پیښی د میو میونارو د هغو پاملرنه ور واړه ول.

ښځه او میړه په ډیر تلوار خونی ته ورننوتل او و یی لیدل یو مار چی یو نیم متر اوږد والی لری په مړژواندی حالت و زانګو ته نږدی د پیښی سره په شخړه اخته دی، خو پیښی هغه سخت زخمی کړی ؤ.

میړه او ماندینی هغه مړژواندی مار وواژه او پیښی ئی ډیره و نازول.

دوی د باختر نماینده ته وو یل چی د غه پیښی د ډیر سروخت راپیدی خوا د ناهید خونی ته تله او راتله. کله چی به ناهید بیده سوه، دا به هم هلته ورته پر ته وه.

## د کندهار په بازار کی

یوی خارجی سیاح یو ماکسی خامکی کمیس، د لاس بسته او کمربند په لس زره افغانی رانیوی.

میرمن جونز د ایټالیا هستیدونکی چی د سیاحت د پاره کندهار ته راغلی ده د کندهار د لاسی صنایعو ستاینه و کړه او وئی ویل: د غه صنایع د خارجی دوستانو د پاره بهترین سوغات او ارمغان بلل کیږی.

دې د یوه ماکسی خامکی کمیس د رغیدو او بشپړیدو د پاره یوه هفته په کندهار کی تیره کړه خو دا کمیس ئی بی لاس ته راوړ.

په دې و روستیو وختو کی کندهاری خامکی صنایعو بین المللی شهرت پیدا کړی دی او ډیر خریداران یی ځان ته بللی دی.

## په زابل کی:

د زابل د ولایت د شنکی د ولسوالی د مرزائی په کلی کی د عطا محمد بزګر په کور کی یو کوچنی پیدا سو چی لاس نه او پښې ئی ۲۴ ګوتی لری.

دا کوچنی د عطا محمد دریم اولاد او صحی حالت یی ډیر سم دی.

# د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبي)
مهتمیم: عبدالکریم (طالب)

## لیکونکی هیات

عبدالقدوس «نجیب»
احمد «راشد»
عبدالمنان «امین»
پیغله قمره «اڅکزۍ»

طباعتي همکار
محمد «بارك»

## ددې ګڼې مضامین



د کندهار نامتومعمار باشی مرحوم
خلیفه نعیم جان